# څرک

## دلویدیځ له وخته تیر اعترافات!!

دیارلسم کال، دریمه، پرلپسې ۹۲مه ګڼه، دلو ۱۳۹۴ل، جمادی الأولی ۱۴۳۷هق، مارچ۲۰۱۶م

مجاهدینو ته دهیواد دنومیالي جهادي اوعلمي شخصیت
محترم مولوي جلال الدین حقاني څو توصیې!

- سلیم حاجي، له یاده مو نه یي وتلی !!!
- د تعلیم او تربیي او عالي تحصیلاتو کمیسیون لخوا په هیواد کې دتعلیمي کارونو د هیئتی راپور
- سوله دوسیلي په توګه!
- مسؤول ناهنجاری های امة مسلمه کیست؟
- دکابل رژیم اردو، ولې دتیښتې او تذبذب ښکار ده؟
- دامیر اطاعت د احادیثو او دفقهې په رڼا کې




علمي، فرهنګي، ټولنيزه اسلامي خپرونه

دريالسم کال، دريمه، پرلپسې ۹۲مه ګڼه، دلو ۱۳۹٤ل، جمادی الأولی ۱٤۳۷هق، مارچ ۲۰۱٦م

امتياز:

دا متيازخاوند: دافغانستان اسلامي امارت دفرهنګي چارو کميسيون

مسؤل مدير: عبيد تنوير

ليکوال پلاوی: ډاکټر صابر، حميد، جميل مېړنی او افضل محمد تراب

ګډون:

| | |
|---|---|
| افغانستان: | ۱۸۰ افغانۍ |
| پاکستان: | ۲٤۰ کلدارې |
| امريکا: | ۶۰ ډالره |
| اروپا: | ۶۰ يورو |
| يوه ګڼه: | ۱۵ افغانۍ<br>۲۵ کلدارې |

يادونه

حتمي نه ده چې په څرک کې خپرې شوې مقالې داداري دپاليسي ترجماني وکړي هره ليکنه دليکوال خپل نظر دی.

تخنيکي چارې: تخنيکي څانګه



پتې: srak_111@yahoo.com


# لړليک

سرمقاله

بسم الله الرحمن الرحيم

# دلويديځ

## له وخته تېر اعترافات!!

په افغانستان کې دناټو دقواوو يوپخوانی قومندان جنرال «ډېو فرېسر» په کندهار کي يوې جوړې شوي کاناډايي غونډي ته په خبرو کي اعتراف وکړ چي دطالبانو دنظام ړنګول دامريکا اوغرب ستره تيروتنه وه، هغه زياته کړه چي دطالبانو سره دجګړې له امله امريکا اوناټو نه داچې افغانستان ارام اوکنټرول نکړ، بلکې د ٤٠ کلونو لپاره منځني ختيځ ته دروند سرخوږی پيداکړ او هلته يې دتباهيو اووزانيو لمبي بلي کړي.

دناټو ددغه قومندان اعتراف په داسې وخت کي مخې ته راځي، چي اوس په هغه جګړه چې امريکا اومتحدينويي په افغانستان کي پيل او اوپه افغانانووتپله يوه نيمه لسيزه اوړي، چي په ترځ کې پنځه لکه مظلوم افغانان امريکااوغرب په خپل وحشت له تيغه تير، يونيم ميلون يې شکنجه اوهم يې کړيدلي افغانان له تل پاتي ، ډول ډول ناورينونه او تباهيو سره لاس اوګريوان وګرځول.

پنځلس کاله وړاندې داسلامي امارت موسس مرحوم ملامحمد عمر مجاهد امريکا اوغرب ته په صريحو ټکو ويلي وو چې دافغانستان د هضمولو اواشغالولو له ناروا فکر اوتصميم څخه دي تير شي اوپه خپلي ټکنالوجي او اقتصاد دې نه تير وځي، ځکه دلته يومعنوي ځواک او قوي اراده موجوده ده ، چې په ډيره ميړانه به دافغانستان له لويشت لويشت خاوري اوديني شعايرو څخه دفاع وکړي اوانجام به مو سخت ندامت اوپښيمانتيا وي!!!

خو امريکا او ملګري يې دخودخواهی په نيشه کې مستغرق وو ، داسې اټکل يې کړی وو چي دځو مياشتو وحشت او بربريت په کارولو سره به دجهاد او قربانی په مينه مست اومالامال ولس وځپي اودغه ميړنی خاوري او ستراتيژيکه سيمه به دتل لپاره ددوئ لاسو ته ولويږي.




خو تیر ۱۵ کلونه افغانستان دنړۍ لپاره پرانیستی کتاب وو، امریکا او ناټو خپله هر ډول وسله اوجنګي تکنالوجی چې په لاس کې درلوده هلته یې وکاروله او بې کچې ډالر یې دجګړې اوسیاست په میدان کې خاوري ایري کړل، خو نتیجه یې هرچا ته لکه لمر ښکاره شوه چې هیڅ هم په لاس ورنغلل ، دتش لاسو اوبې وسه افغانانو دقوي ارادي په وړاندې دامریکا اوناټو یونیم لک مجهز لښکر ، دکابل رژیم څلور لکه ملي اردو او دوه تریلینو ډالرو سخته اوفاحشه ماته ولیده اوپه دې ونتوانیدل چې دافغانستان د ۳٤ ولایتونو څخه حد اقل په یوه ولایت اووړوکي سیمي کې هم امنیت تامین او یوه نسبي اداره هلته جوړه کړي.

دناټو دقومندان جنرال «ډېو فرېسر» تازه اعترافات په ګوته کوي چې که امریکا او متحدینو یې پنځلس کاله دمخه له هوش او عقل څخه کار اخیستی وای او دمرحوم ملاصاحب وړاندویني په غور اوریدلي وای، نن به هغوئ له دومره خجل اوشرمنده حالت سره نه مخ کیدلای، چې په جګړې کې یې له قدم قدم شکست وروسته اوس دسولي او مذاکراتو لپاره، کله چین ، کله پاکستان او کله بل چا ته لمن څولی کوي، چې که طالبان دجګړې په ځای دسولي لورته ګامونه واخلي او مذاکرات ورسره وکړي.

خو اسلامي امارت دامریکا او ناټو په خباثتونو او چلوټو ښه پوه دی ، هیڅکله به یې په نرمو غاړو او دسولي او تفاهم په وچو شعارونو تیر نه ووځي، ځکه دامریکایانو حضور که لږ وي یا ډیر، هغه دافغانستان لپاره زهرقاتل دی.

دناټو قومندانان ددې پرځای چې په پخوانیو تیروتنو اعترافات وکړي اودامریکا په حماقتونو تبصري وکړي ، ښه داده چې امریکا ته دوتلو لارې ور وښیی او مشوره ورکړي چې هرڅومره ژر کیدلای شي، له افغانستان څخه پوځیان وباسي، په دې کې هم دامریکا او هم دافغانانو ګټه او خیر دی.

# دمجاهدینو دکلنیو شرعي دورو په وياړ د

# اميرالمؤمنين ملا اختر محمد منصور حفظه الله پيغام

الحمدلله رب العلمين والصلوة والسلام على رسوله محمد وعلى آله و اصحابه أجمعين و بعد:

مجاهدينو ورونو!

السلام عليكم ورحمة الله وبركاته

الله تعالى دې وکړي چې د صحت او عافيت په جامو به پټ ياست، دا چې زحمت مو ايستلى او په کلنيو تربيوي پروګرامونو کې مو ګډون کړى له الله تعالى ښخه درته کامل کامل اجرونه غواړم، الله تعالى مو دې د جهاد په لار کې او د اسلامي نظام د قيام په مقصد تېول تير کړي مشقات،ستړياوې، تندې، لوږې، بې خوابى، زخمونه، قيدونه، خپګانونه او هر ډول تکليفونه قبول او منظور وګرځوي. آمين يارب العلمين

مجاهدينو ورونو! د اسلامي امارت د مشرتابه لخوا د مجاهدينو بالخصوص مسؤلينو لپاره د داډول تربيوي پروګرامونو د تدوير مقصد دادى چې مجاهدينو ته د ستر عبادت جهاد په اړه لازم شرعي او فقهي علم، د قتال في سبيل الله آداب، له عام اولس سره تعامل، د نيت اصلاح، اطاعت او دغسې نورو ضروري مسائلو په اړه شرعي ارشادات او لارښوونې بيان سي.

شرعي مسئله داده چې کوم مکلف مسلمان په کوم عبادت يا دنيوي کاروبار باندې مشغول وي د هغه عبادت يا معاملې اړوند شرعي علم او مسائل زده کول وربانديې فرض عين دي، مثلا کله چې يو مسلمان بلوغ ته ورسيږي او مکلف سي نو لکه څرنګه چې لمونځ وربانديې فرض دى همداسې د لمانځه شرعي علم هم وربانديې فرض کيږي ترڅو لمونځ په سمه طريقه اداء کړي. نن سبا چې موږ او تاسو په يوه خورا مهم عبادت يعني جهاد باندې بوخت يو، چې دا داسې حساس عبادت دى چې په دې کې انسانان وژل کيږي، د خلکو په ځانونو او مالونو باندې سلطه او برلاسي راځي او که له چاسره د جهاد لازم شرعي علم نه وي نو ضرور به په خطراتو او سرکشۍ کې واقع کيږي، نو ځکه زموږ او ستاسو لپاره خورا اشد ضروري ده چې له دې فرصت نه په استفاده د جهاد لازم شرعي

مسائل زده کړو، د جهاد په آدابو، مشروعاتو او ممنوعاتو باندې علم راولو، داسلامي امارت د مجاهدینو لائحه چې د شریعت مطهره په چوکاټ کې جوړه سوې او مجاهدینو ته یې په ټولو مسائلو کې پوره وضاحت کړی باید چې په اهمیت یې ځان پوه کړو په هره ماده یې سر خلاص کړو او په پوره دقت او توجه سره یې عملي کړو.

نو زموږ لخوا هم تاسو ته دا توصیه ده چې په تربیوي دورو کې په پوره شوق او اخلاص سره برخه واخلئ، د علماء کرامو او مشائخو درسونو او وعظونو ته پوره توجه وکړئ، د هغوی خبرې ، نصائح، لارښوونې او مهم شرعي مسائل د امکان تر حده له ځان سره یاداشت کړئ، د ځان لپاره یې معمول وګرځوئ او خپلو نورو مجاهدینو ته یې هم ورسوئ، ترڅو زموږ مقدس جهاد لکه څنګه مو چې شعار دی واقعا او سل فیصده د شریعت مطهره په چوکاټ برابر سي او په جهادي صفوفو کې له شریعت نه هیڅ ادنی مخالفت او تعرض هم ونه لیدل سي.

مجاهدینو ورونو!

تاسو ته بهتره معلومه ده چې جهاد یو عبادت دی او په هر عبادت چې اجر او ثواب مرتب کیږي نودا تر نیت پورې تعلق لري چې هغه عمل یا عبادت په کوم نیت ترسره کیږي.نو که غواړو چې جهاد مو واقعا جهاد في سبیل الله وګرځي، په دنیا کې د الله تعالی د نصرت وړ او په اخرت کېورباندې لوی لوی ثوابونه او درجات مرتب سي نو تر هرڅه مخکې باید خپل نیتونه اصلاح کړو، له نیت څخه باید ټول مادي او دنیوي اغراض، لکه منصب، شهرت، دبدبه، غنیمت، واکمني او دغسې نور مقاصد وباسو بلکې یوازینی هدف مو باید صرف او صرف د الله تعالی رضا او د الهي نظام حاکمیت وي.

د نیت له اصلاح وروسته چې کله د عمل ډګر ته ځو او عملا په جهاد لاس پورې کوو، نو په دې مرحله کې باید دې ته متوجه واوسو چې هر عمل مو باید د شریعت او حنفي فقهې په چوکاټ کې وي، لله الحمد شریعت موږ ته هرڅه واضح کړي، له هر چاسره د تعامل شرعي طریقه معلومه ده، موږ چې وایو د جهاد مقصد مو اعلاء کلمة الله دی، نو تر ټولو لومړی باید کلمة الله یا شریعت پر خپل ځان عالي او حاکم کړو، په هرڅه کې باید شریعت ته غاړه کیږدو، په جهاد کې باید ځاني اجتهاد، شخصي مزاجونه یا افراط او تفریط ورګډ نه کړو، بلکې یوازې د شریعت تابع واوسو، په دې باید ټینګه عقیده ولرو هغه څه چې شریعت یې امر کوي زموږ په خیر دي که څه هم ظاهرا د چا په مزاج درانه تمامیږي.

په جهادي امورو کې شریعت ته په التزام سربیره باید له الله تعالی څخه ویره او تقوی هم خپله خاصه وګرځوو،تقوی خورا ستر صفت دی چې د الله تعالی په نزد د انسانانو د عزت لپاره معیار بلل سوی دی، هر څوک چې څومره زیاته تقوی ولري الله تعالی ته به همدومره ور قریب او د الله تعالی په نزد به عزتمند وي.

د خپلو امیرانو اطاعت،په کشرانو ملګرو شفقت،د مشرانو ملګرو احترام، له عامو وګړو سره ښه چلند، ورورولي ، ایثار، خدمت،تواضع،حلم، عفو،امانت داري،حسن تعامل او حسنه اخلاق نور هغه ښایسته خویونه دي چې هر مجاهد باید ورباندې ځان مزین کړي،ځکه مجاهد باید د عامو خلکو لپاره د واقعي مسلمانۍ نمونه او مثال وي ترڅو یې نور خلک پیروي وکړي او دده د عالي شخصیت او حسنه اخلاقو په برکت خلک اسلام او جهاد ته تشویق سي.

هغه د الله تعالی بندګان یا عام مسلمانان چې زموږ تر واک لاندې سیمو کې اوسي، له موږ سره مخامخ کیږي،زموږ اداراتو ته مراجعه کوي اویا په یوه نوعه ورسره زموږ تعامل راځي،باید په دې پوه شو چې دغه بې وسه او بې دفاع خلک زموږ په لاس کې امانت دي،دوی الله تعالی موږ ته راسپارلي او موږ ورباندې حاکمان یو،دا زموږ لپاره لوی د ازموینښت ځای دی چې موږ له دوی سره څرنګه چلند کوو؟

که خدای مکړه له دوی سره د کبر، غرور،بداخلاقۍ او له شدت څخه ډک چلند وکړو، ضرور به د الله تعالی د قهر مورد ګرځو،ځکه الله تعالی په خپلو بندګانو هیڅ نوع ظلم د هیچا لخوا نه قبلوي،نوځکه باید متوجه واوسو او د نبوي فرمان په مقتضی چې فرمایي: بشروا و لاتنفروا، یسروا و لاتعسروا. خلکو ته د خوښۍ

خبرې وکړئ او نفرت مه کوئ، آساني وکړئ او سختي مه کوئ.
باید له خپل مسلمان اولس سره د حسنه اخلاقو،عاطفې او نرمۍ څخه ډک چلند وکړو،ترڅو هم الله تعالی رانه راضي سي او هم د خپل اولس ملاتړ راسره وساتلی سو.

د روانو حالاتو په اړه باید ووایم چې لله الحمد د الله تعالی د فضل او نصرت په برکت د اسلامي امارت مجاهدین د بل هر وخت په نسبت په ښه حالت کې قرار لري،د هیواد په بیلابیلو ولایاتو کې الله تعالی مجاهدینو ته سترې فتحې ورنصیب کړي دي او لا هم د فتحو لړۍ جریان لري،ددښمن مختلف النوعه دسیسې چې غوښتل یې مجاهدین وربانديې پارچه پارچه کړي، د اسلامي امارت بنیادونه کمزوري کړي او د مجاهدینو مورال مات کړي لله الحمد دغه ډول ټولې سیاسي،تبلیغاتي او جنګي دسیسې یې له شکست سره مخامخ سوي دي. د اسلامي امارت صف واحد دی او هره ورځ یې بنیادونه د ټینګښت او استحکام په حالت کې دي،نو ځکه باید د الله تعالی شکرونه اداء کړو او له تیرو حالاتو په زده کړه باید په راتلونکې کې ددښمن دسائسو ته متوجه واوسو.

د تیرکال په جریان کې که کوم ورونه خپه سوي وي یا د څه وخت لپاره له اسلامي امارت څخه په فاصله کې پاته سوي وي،باید د امکان ترحده کوښښ وسي چې قناعت ورکړو، خوشاله یې کړو او د اسلامي امارت له متحد صف سره یې وصل کړو. زه د اسلامي امارت د مؤسس او زموږ او ستاسو د محبوب رهبر أميرالمؤمنين ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله دا خبره یو ځل بیا را ژوندۍ کوم او وایم چې موږ له هیچا سره شخصي دښمني او تضاد نلرو، زموږ دوستي او دښمني یوازې د اسلام د مقدس دین د اساساتو پر بنا ده.

څرنګه چې اسلامي امارت بیلابیل کمیسیونونه او شعبې لري نو نظامي مجاهدین او مسؤلین باید له ټولو امارتي اداراتو سره همکار واوسي،مجاهدین په نظامي عملیاتو سربیره باید د دعوت او ارشاد یا ددښمن د افرادو په جلبولو کې هم پوره همکاري وکړي، د معارف په برخه کې د هیواد ماشومانو او ځوانانو ته باید د شریعت په چوکاټ کې د دیني او عصري تعلیم زمینه برابره کړي همداراز په ټولو کاري برخو کې باید د خپل توان په اندازه د جهادي کارونو په پیشرفت او بهبود کې ونډه واخلي.

په پای کې باید یو ځل بیا واضحه کړم چې زموږ تګلاره الهی شریعت او نبوي تګلاره ده، هغه چې موږ ته یې مرحوم امیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد ژوندۍ بیلګه وړاندې کړې او زموږ لپاره د دستورالعمل مثال لري. موږ له شریعت پرته بله تګلاره نلرو، زموږ بیلابیل دښمنان د اسلامي امارت د بدرنګۍ لپاره قسماقسم تبلیغات کوي او په راتلونکې کې به هم ډول ډول حربې وکاروي،خو موږ باید په صراط مستقیم برابر،هوښیار او بادرکه واوسو، ددښمنانو د تبلیغاتو او وسوسو اچولو پروا باید ونه کړو او یوازې خپل مکلفیت او کار ته باید متوجه واوسو.

الله تعالی ته امید دی چې ان شاءالله په راتلونکو میاشتو کې به د ښو فتوحاتو شاهدان یو، د تیر کال جریاناتو، ددښمن قسماقسم دسیسو او د اسلامي امارت بریا وښوده چې لله الحمد الهي نصرت له موږ سره دی، موږ په اسلامي نصرت ټینګه عقیده او باور لرو او پردې مو ایمان دی چې که موږ پر شریعت برابر او محکم پاته شو نو هیڅ دښمن به په موږ غالب نه سي او همیشه به بریالي یو ځکه الله تعالی فرمایي: وأنتم الأعلون ان كنتم مؤمنين. آل عمران

نو راځئ چې په الهي نصرت په اتکاء سره په قوي ایمان او عزم د الله تعالی د دین د خدمت لپاره خپل تعهد تجدید کړو، خپل نیتونه اصلاح کړو او یوازې د اعلاء کلمة الله په خاطر په قوي عزم او لوړ مورال په دښمن د وروستي ګوزار لپاره تیاری ونیسو.

په پای کې یو ځل بیا خپل سلامونه او نیکې هیلې درته وړاندې کوم،او دعاء کوم چې الله تعالی دې ټول اسلامي امت له ورپیښو مشکلاتو خلاص او مجاهدینو ته بری ور نصیب کړي، الله تعالی دې یوځل بیا په ټول هیواد د اسلامي نظام وړانګې خپرې کړي او الله تعالی دې زموږ ځوریدلي اولس ته د اسلامي نظام تر سیوري لاندې آرام ، عزتمن او سوليیز ژوند ورنصیب کړي. آمین یارب العلمین

# مجاهدینو ته

## د هیواد دنومیالي، جهادي او علمي شخصیت محترم

## مولوي جلال الدین (حقاني) حفظه الله

## څو توصیې!

بسم الله الرحمن الرحیم

زما ګرانو مجاهدینو ورونو!

جهاد هغه تعلیمي مدرسه ده چې انسان ورکې د مبارزې اومجاهدې د ژوند ډېرې لوړې او ژورې زده کوي.

د جهادي مدرسې شاګردان ځانګړې خصوصیات اومشخصات لري ؛ داسې مشخصات چې سړی یې نه په خوله تعبیرولای شي اونه یې هم په قلم د هغو حق اداء کولای شي؛ ځکه د دوی د مشخصاتو عیني تجسم یواځې د هغو سپیڅلیو بندګانو په ملائکي اخلاقوکې لیدل کیږي چې الله تعالی په دغې ویاړلې مدرسې کې د خپلې لارې د خدمت لپاره غوره کړې وي او هغوی یې په دې قراني خطاب ویاړلې :

التَّائِبُونَ الْعَابِدُونَ الْحَامِدُونَ السَّائِحُونَ الرَّاكِعُونَ السَّاجِدُونَ الْآمِرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَالنَّاهُونَ عَنِ الْمُنْكَرِ وَالْحَافِظُونَ لِحُدُودِ اللَّهِ وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِينَ (١١٢التوبة)

زما مجاهدینو ورونو! داچې ما دخپل ژوند ډېره برخه په همدې مدرسې کې د زده کوونکي اوبیا د ښوونکي په حیث تیره کړې ده ، د هغې له ډېرو داسې شاګردانو سره مې ژوند تیرشوي چې هغوی به په واقعي ډول د الله تعالی د دغه مبارک قول مصداق ول:.... وَيَتَّخِذَ مِنكُمْ شُهَدَاءَ وَاللَّهُ لَا يُحِبُّ الظَّالِمِينَ ـ ال عمران ١٤٠ )

له دغو جهادي ځوانانو سره ما د خپل ژوند ډېروخت تیر کړی ، د هغوی له نیکو اخلاقومي تأثر اخیستی او هغوی هریوه مي د خپلو نیکو اخلاقو له وجې په زړه کې خاص ځای پیداکړی ، که څه هم چې هغوي په جغرافیایي لحاظ په مختلفو هیوادونو اوملیتونوپوری تړاو درلود ، خوماته داسې ښکاریدل چې هغه زما خواږه ورونه ، زما دکاله خلګ او زما د زړه ټوټې وي .

زما او د هغوي ترمنځ ایماني تړاو او اسلامي اخوت قائم شوی وه ، اوس چې زما د عمر د تیریدو له کبله لما څخه ډېر څه هیر شوي ، خو د دغو جهادي ځوانانو اسلامي اخلاق، جهادي غیرت او ایثار مي هیڅکله نه هیرېږي .

پرهغه مهال ډېر کلونه تیرشوي، او ښایي اوس د هغو ځوانانو له جملې څوک ژوندې هم نه وي پاتې ، خو د هغوی ښکلې خیرې او جهادي کارنامې اوس هم زما په زړه کې جلاجلا نقش دي.

د هغوی له جملې څخه د شهید مولوي احمدګل شجاعت ، د شهید مولوي فتح الله ایثار ، د مولوي نظام الدین تدبر او حوصله ، د شهید محمد اسمعیل (حقاني) سرښندنه ، د شهید عبد الله عزام فقاهت، دشیخ اسامه بن لادن سخاوت، د ابومصعب الزرقاوي غیرت ، د خطاب عبقریت ، دشامل بسایف شهامت ، د ابو حارث فداکاري او د ابوالولید المصری وفا ... دا هرڅه اوس هم زما په حافظه کې د ډېرو خوږو خاطراتو په توګه مشق دي.

ماته چې کله هم له ځانه سره د جهادي جبهاتو خاطرات رایاد شي داسې فکرکوم چې اوس هم له دغو

مجاهدینو سره د ژورې ، برې او تور غره په مورچلونوکې ناست او د خوست په ښارکې د یرغلګرو دحرکاتو ترصدکوم.

همدا اوس مې هم د هغوی هریوه تصویر په ذهني حافظه کې موجود، او د هغوی هریوه د بیلتون دردمنې لحظې مي سخت ځوروي، نه پوهیږم چې زه ولي تراوسه له هماغه سعادت (شهادت) نه محروم یم کوم چې زما خواږه ورونه او د جهادي لارې ملګرې وربانديږ ډیر مخکي مشرف شول.

زه په خپل ژوند کې پر هیڅ شي دومره غبطه نه کوم لکه د هغوشهید شویو ملګرو په ښو اخلاقو او د خدای په لاره کې سرښندنه باندې چې یې کوم .

مجاهدینو ورونو! ما مخکې وویل چې جهاد یوه مدرسه ده چې انسان ورکې دخپل ژوند دسعادت درس حاصلوي ، په نورو مدارسوکې د غه تعلیم نظري، خو په جهادي مدرسه کې هرڅه عملي وي ، تقوی عملي وي ، صداقت عملي وي ، سرښندنه عملي وي ، ایثار عملي وي او ....

په جهادي ژوند اوجهادي تعلیماتوکې عملي جانب دومره قوي دی چې څوک دقران کریم د الانفال ،التوبه او الاحزاب سورتونو جهادي آیتونه تلاوت ، اویاهم د صحیح البخاري کتاب المغازی لولي سړی فکر کوي چې عملا همدا اوس د احد، بدر ، خندق او حنین په سنګرونو کې ګرځي.

تاسو وګورئ ورونو په غزوه بدرکې الله تعالی مجاهدینو ته څومره تاریخي فتح ور نصیب کړه . ایا پوهیږئ د همدې سترې فتحې لامل څه وه؟

فقط د خپل رب په حضورکې د مجاهدینو نهایي عجز او انکسار...

د بدر د غزا تر پیلیدو له مخه رسول الله او صحابه کرامو خپل خدای ته د عجز او انکسار لاسونه پورته کړل او ورته ویې ویل :

اللهم ان تهزم هذه العصابة فلن تعبد في الأرض بعد هذا الیوم ... اې الله که ته دغه ټولۍ مغلوبه کړې بیابه هیڅوک د ځمکې پرمخ ستاعبادت ونه کړي.

هماغه و چې الله تعالی ورته په عوض کې دا الهي تسله راولیږله :

وَلَقَدْ نَصَرَكُمُ اللَّهُ بِبَدْرٍ وَأَنتُمْ أَذِلَّةٌ فَاتَّقُوا اللَّهَ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ ـ آل عمران(۱۲۳)

**د انس بن مالک رض څخه روایت دی چې نبي کریم صلي الله علیه وسلم وفرمایل.**

**کله چې دوه ملایکې د انسان د یوې شپې او ورځې اعمال نامه الله تعالي ته وړاندی کوي نو که چیرې الله تعالي د اعمال نامې په اول یا په آخرکې نیک عمل وګورې نو ملایکو ته وایي چې تاسي زه ګواه او شاهد نیسم چې ما د دی بنده کوم ګناهونه چې د عمل نامه په منځ کې کړي دي ښښم یې ځکه چې د اعمال نامې په اول او په آخرکې نیک عمل تر سره کړی نو د اعمال نامې منځني ګناهونه ورته ښښم.**

**رواه ترمذي**

زمري افغان

# پر اسلامي خاورو دښکېلاکګرو سيالي

د اوسنۍ نړۍ ښکېلاک او زبېښاک هم د ۲۰ مې، ۱۹ مې او ۱۲مې پېړۍ د هغو بوی لري. ښکېلاک او زبېښاک تر پخوا په لا زيات شدت روان دی، خو په نوې بڼه او ډول. ښکېلاکګر دولتونه اوس هم پر اسلامي نړۍ نه يوازې دا چې واکمن دي، بلکې په خپلمنځي سياليو هم بوخت دي.

په دې ليکنه کې په نوی ښکېلاک بحث نه کوو، بلکې پر هغو سياليو غږېږو چې د زړو او نوو ښکېلاکګرو ترمنځ روانې دي. اسلامي نړۍ اوس هم د امريکا، برېتانيا، فرانسې، چين، روسيې او نورو ښکېلاکګرو هېوادونو د سياليو په اور کې سوځي. په دې ليکنه کې ځينې داسې مثالونه ورکوو چې پر اسلامي خاوره د فرانسې، امريکا او برېتانيا د سياليو يو روڼ تصوير ورکوي. امريکا، برېتانيا او فرانسه همدا اوس هم له له افريقا تر منځنۍ ختيځه او بيا تر جوبي او مرکزي اسيا پورې د اسلامي نړۍ پر سر، که له يوه اړخه په ګډه همکاري بوخت دي چې مسلمانان کمزوري کړي، له بله اړخه پټې او ښکاره سيالۍ لري چې له مخې يې نه يوازې د اسلامي امت شتمنۍ لوټ کېږي، بلکې

اسلامي نړۍ د دوی د ګټو د جګړې په اور کې سوځي. د اسلامي نړۍ لويه برخه په تاريخي لحاظ د فرانسې او برېتانيا تر کنټرول لاندې وه او د اسلامي خلافت تر سقوط وروسته يکې د دوی لاسپوڅي واکمن وو. خو په نړيوال ستېج د امريکا له را څرګندېدو او بيا پياوړې کېدو سره دغه نوی ښکېلاکګر هېواد هم هڅه وکړه چې د اسلامي نړۍ ځينې خاورې تر خپل کنټرول لاندې راولي، خپل لاسپوڅي په کې واکمن کړي او شتمنۍ يې چور کړي.

د همدغو هڅو په لړ کې د امريکا، برېتانيا او فرانسې ترمنځ پټې او ښکاره سيالۍ پيل شوې او لا ترننه روانې دي. له دې امله چې امريکا د برېتانيا او فرانسې په پرتله سر ځواک دی، نو په ځينو هېوادونو کې يې د فرانسې او برتانيا نفوذ له منځه يووړ او خپل نفوذ يې زيات کړ، په ځينو کې يې له دوی سره ګټې او نفوذ وويشه او په ځينو هېوادونو کې لا هم د دوی د ګټو او نفوذ لانجه روانه ده او په دغه اور کې اسلامي امت سوځي. د دوی سيالۍ په ځينو هېوادونو کې يوازې سياسي وې، يعنې اړ نه شول چې وسله وکاروي، امريکا له ديموکراسۍ او خپلو نورو شعارونو په استفادې په ځينو هېوادونو کې د برېتانيا او فرانسې لاسپوڅي څنګ ته کړل او پر ځای يې خپل لاسپوڅي واک ته ورسول.

**پر اسلامي خاورو د ښکېلاکګرو سيالي**

دوی په دې ډول په ځينو سيمو کې نرمه لوبه وکړه. لکه دوی همدا کار په ترکيه کې وکړ. ترکيه د اسلامي خلافت تر سقوط وروسته په دوديز ډول د برېتانيا تر کنټرول او نفوذ لاندې وه. ترکيې د خپل هر اړخيز ارزښت له امله د امريکا پام ځان ته ور واړاوه. امريکا هڅه وکړه چې په ترکيه کې د برېتانيا نفوذ کم او خپل زيات کړي. له دې امله چې د ترکيې اصلي ځواک يعنې پوځ د برېتانيا تر نفوذ لاندې و، نو ځکه د امريکا پرله پسې هڅې ناکامې شوې. دوی وروسته وروسته هڅه وکړه چې په ترکيه کې د عدالت او پرمختګ ګوند ته لاس ورکړي. امريکا د همدغه ګوند په مرسته وکولی شو چې خپل نفوذ زيات کړي او ورو ورو پوځ تر کنټرول لاندې روالي او پر دې چار بريالي شول چې په ترکيه کې د برېتانيا نفوذ

کم کړي. دوی همدغه کار په پاکستان کې هم وکړ. پاکستان هم په دوديز ډول د برېتانيا تر کنټرول لاندې و او نږدې ۲۰۰ کاله په همدې سيمه (برتانوی هند) یااوسني پاکستان برېتانيا واکمنه وه، خو پاکستان هم د امريکا لپاره یو مهم هېواد و، نو ځکه يې هڅه پيل کړه چې په دغه هېواد کې خپل نفوذ زيات کړي. د پاکستان ملکي نظام، پوځ، سياسي ګوندونه، عدلي او قضايي نظام او استخباراتي ټول له اساسه د برېتانيا تر ژور اغېز لاندې وو. د امريکا لپاره دا سخته وه چې دغه هېواد تر خپل کنټرول لاندې راولي، نو له همدې امله يې يوه اوږده او منظمه هڅه وکړه. د همدې هڅه په پايله کې د برېتانيا له خوا جوړ شوی د پاکستان ملکي حکومت، پوځ، استخبارات او تر ډېره سياسي ګوندونه د امريکا تر نفوذ لاندې راغلل. اوس د پاکستان په يادو ادارو کې د برېتانيا نفوذ د پخوا په پرتله کم دی او د امريکا نفوذ تر برېتانيا ډېر دی، خو برېتانيا اوس هم ددغه هېواد په عدلي او قضايي څواک کې بر لاسي ده او تر امريکا زيات زور لري. خو له دې امله چې په پاکستان کې هر څه د پوځ او استخباراتو په لاس کې دي، نو ځکه په دغه هېواد کې د امريکا لاس بر دی.

په عاج ساحل کې کودتا او وسله: فرانسې عاج ساحل په ۳٤۸۱م کال کې اشغال کړ او تر خپل ملاتړ لاندې هېواد يې اعلان کړ، سره له دې چې مسلمانانو په دې هيواد کې د فرانسويانو په مقابل کې مقاومت وکړ او هغوی ته يې ماتې ورکړه او اسلامي امارت يې اعلان کړ، چې اسلامي شريعت پکې نافذېده، خو فرانسويانو په تدريج سره وکولای شول چې د عاج ساحل د ګاونډيو هيوادونو د ځينو قومونو په کمک په دغه هيواد کې خپل نفوذ زيات کړي او په خپله ولکه کې يې راولي. په خپله مستعمره اعلان ۳۹۸۱م کال کې فرانسې عاج ساحل رسما کړ. وروسته فرانسې په۱۹٦۰م کال کې عاج ساحل ته تش په نوم استقلال ورکړ، لکه چې په همدې ترتيب چارلس ديګول څو افريقايي هيوادونو ته همداسې تش په نوم استقلال ورکړی و. همدا و چې عاج ساحل د فرانسې د يوه ګوډاګي له خوا چې هوفويټ بوګني نوميده اداره کيده، نوموړی د خپل ژوند تر وروستيو ورځو په دې مقام کې پاتې شو او د خپلې حکمرانۍ تر پايه يې په فرانسوي څواکونو تکيه کړې وه. عاج ساحل د ککو يو بډای هيواد دی، چې د نړۍ ٤٠ سلنه ککو توليدوی، خو په دې توليداتو کې لويه برخه د فرانسوي کمپنيو ده. دا هېواد د ککو نه علاوه د مسو، الماسو، کوبالتو او يورانيمو معدنونه هم لري، چې ډيره ګټه ترې فرانسويانو وړې ده. همدارنګه فرانسويانو په دې هيواد کې ټول مالي بنسټونه تر خپلې ولکې لاندې راوستي. د عاج ساحل د حکومتي، اقتصادي او امنيتي چارو مران فرانسې تر خپل نفوذ لاندې راوستي دي، لکه څرنګه چې ۹۰۰ کسان شته چې له رژيم څخه دفاع کوي او سربېره پر دې دوی د فرانسوي پانګوالو څخه چې شمېر يې د۱۰۰۰۰نه تر ۲۰۰۰۰ تنو پورې رسېږي ملاتړ او دفاع کوي. عاج ساحل د اتلانتيک په ساحلونو کې د ګيني په خليج کې موقيعت لري. عاج ساحل د يوه ځانګړې سراتيژيک موقيعت څخه برخمن دی. له همدی کبله فرانسې په دې هېواد کې د خپل نفوذ او بقا لپاره ډېرې هڅې کړې، ترڅو خپله ژبه او فرهنګ په دې هيواد کې ترويج کړي. د عاج ساحل همدغه اهميت ته په کتو سره امريکا پرله پسې هڅه کړې چې عاج ساحل د فرانسې له نفوذه وباسي او پر خپله ولکه کې يې راولي.

نو د دې لپاره چې متحده ايالات خپلې دې موخې ته ورسيږي، په عاج ساحل کې يې پېښې او سياسي سرخوږی را منځ ته کړل. د عاج ساحل د ۱۹۹۹م کال په ډسمبر کې د يوې نظامي کودتا شاهد و او د دې کودتا رهبر جنرال رابرت ګيوی و چې د ټاکنو ژمنه يې ورکړه، چې دا ټاکنې د ۲۰۰۰م کال د اکتوبر په ۲۲مه ترسره شوې. فرانسويانو د امريکايي سرچينو د نفوذ سره سره وکولای شول چې د عاج ساحل په دولت کې د خپل ګوډاګي لوران ګباګبو په مټ له پوره نفوذ څخه برخمن پاتې شي. په دې سره نه يوازې دا چې د امريکا د دولت لخوا فشارونه کم نه شول، بلکې داسې پولو ته ورسېدل چې فرانسويان په بل پړاو ټاکنو کې د لوران ګباګبو له ګوښه کېدو څخه انديښمن شول، نو له همدې کبله کله چې د نوموړی د ولسمشرۍ دوره په ۲۰۰۵م کال کې پای ته ورسيده، نوموړی ټاکنې څو ځله وځنډولې، تر هغې چې د متحده ايالاتو

لخوا په ده او د ده پر رژیم فشار راوړل شو، لکه د بندیزونو وضع کول او د نړیوالې ټولنې څخه د عاج ساحل ځنګ ته کول. وروسته بیا په ۲۰۱۰ کال کې ددغو هېوادونو ترمنځ د همدې سیالۍ له امله په دغه هېواد کې د ټاکنو لانجه رامنځ ته شوه او همداسې په نورو کلونو کې یې دوام وکړ. خو وروسته روښانه شوه چې امریکا په عاج ساحل کې فرانسې د نفوذ له لوړې مقام څخه را وغورځوله او خپل نفوذ یې ټینګ کړ. مګر فرانسه اوس هم په دغه هېواد کې نفوذ لري او ګټې تر لاسه کوي.

**په الجزایر کې شخړه:** د الجزایر برېتانیا پلوی ولسمشر بوتفلیقة د یوه نظامي انقلاب له لارې چې په کال ۱۹۵۶م کې د امریکا پلوی احمد بن بیلا پر ضد ترسره شو، حکومت تر لاسه کړ. له دې وروسته په دغه هېواد کې برېتانویان واکمن شول. خو په ۱۹۹۲م کال کې د فرانسې ګوډاګیانو په پوځ کې انقلاب وکړ. دوی له دې لارې هڅه وکړه چې د اسلامي نجات جبهې واک مخه ونیسي چې ټاکنې یې ګټلې وې. وروسته الجزایر وینو او وژنو ته ولاړ چې ددې هېواد ډېر مسلمان په کې قرباني شول. په کال ۱۹۹۹م کې عبد العزیز بوتفلیقة ولسمشر شو او د ۲۰۰۹ کال ټاکنې یې هم وګټلې. بوتفلیقة له بریتانیا سره پیاوړې او باوري اړیکې لري او د دې د توجیه کولو لپاره یې په ۲۰۰۶م کال کې له بریتانیا څخه د لوړې الجزایري جمهور رییس په توګه لیدنه وکړه.

**. په مالي کې:** په ۲۰۱۲ کال کې په مالي کې ګودتا وشوه چې ترشا یې امریکا وه، ځکه امریکا هڅه کوله چې په مالي کې نفوذ پیدا کړي. امریکا په پیل کې له مالي سره ځینې تړونونه امضا کړل، ترڅو مالي ځواکونه له تروریزم ! سره د مبارزې لپاره وروزي او د یاغي ډلو سره د جګړې لپاره اړوند تکتیکونه وروښيي. امریکا به په مالي کې ضابطان خوښول او بیا به یې د زده کړو لپاره امریکا ته استول. د مالي د انقلاب رهبر نقیب امادو د امریکا د سفارت له خوا د نخبه ضابطانو له ډلې څخه غوره شوی و، ترڅو د امریکا په متحدو ایالتونو کې د تروریزم په وړاندې د مبارزې تمرین وکړي. امریکایي ډیپلوماتانو منلې چې امادو د خاصو دندو لپاره څو ځله امریکا ته سفرونه کړي دي. له دغه انقلاب څخه موخه په مالي کې د فرانسوي نفوذ مخنیوی و، ځکه چې هغه بنسټیزه موخه وه او بیا یې پر ځای د امریکا نفوذ رامنځ ته کول وو. ددغه انقلاب په پایله کې فرانسوي نفوذ له منځ ولاړ، له همدې امله فرانسې ته موضوع برخلیک ټاکونکې شوه. که چېرې فرانسه په مالي کې خپل نفوذ بېرته ترلاسه نه کړي، نو په افریقا کې به یې نفوذ په تدریجي ډول له منځه لاړ شي. له همدې امله ډېرې هڅې او کوښښونه کوي، ترڅو په مالي کې نړیوالې مداخلې ته لاره اواره کړي او د مالي دولت بېرته خپل مسیر ته ورستون کړي. له همدې امله د امنیت شورا له لارې فرانسې هڅه وکړه چې مالي ته ځواکونه ولیږي او په دې چاره بریالي هم شول، خو د امریکا نفوذ هلته زیات شوی و او فرانسې بېرته لوړې حالت ته ونه ګرځېده.

پایله: په اسلامي نړۍ کې د امریکا، برېتانیا، فرانسې او نورو دولتونو سیالۍ او استعماري موخې بیخي روښانه دي او ګڼ نور مثالونه یې هم شته، خو همدا یاد شوي مثالونه بسنه کوي. اسلامي نړۍ د واحد اسلامي محور په نشتوالي کې د لویو دولتونو د مبارزو او سیالیو ډګر دی. هغه هم د کافرو استعماري دولتونو، چې د مسلمانانو په هېوادونو باندې یو له بل سره مبارزې کوي، ترڅو هلته خپل نفوذ زیات کړي، د هغوی شتمنۍ لوټ کړي او هلته خپل لاسپوڅي واکمن کړي. سره له دې چې اسلامي امت هر ډول بهرنۍ مداخلې ردوي، مګر یوازې په اسلامي هېوادونو کې حاکم رژیمونه او لاسپوڅي سیاستوال دي چې له دغه مداخلو څخه راضي دي. نو دغه نظامونه او سیاستوال دي چې د پردیو مداخلې ته تیار څه چې، آن د کافرو ښکېلاکي دولتونو ملګري هم دي، ځکه هغوی له غرب څخه د پیروۍ پر بنسټ تاسیس شوي دي. د هغوی په دستور او نظام باندې روان دي. د هغوی په طریقو چارواکي ټاکي، ترڅو په دغه اساس سیاست وکړي

منقاد

# مسؤول ناهنجاری های امة مسلمه کیست؟

سایرمسلمانان مسئولیت وضع فعلی اسلام را بدوش دارند ، چون اسلام ازآن جهت بصورت فعلی درآمده است، جماعه مردم از قوانین اسلام بی‌خبراند و ناآگاهانه اندک اندک ازنظام اسلام منحرف ودورشده اند وجماعتی مردم با فسق، کفر و الحاد، به اندازه‌ای مأنوس شده است که این همه اوضاع را می‌بیند وفکر می‌کند اسلام به آن مخالفتی ندارد و گمان می‌بردکه اسلام با فسق وفجور، کفر والحاد، کاری ندارد ودستورمبارزه نداده است. اسلام تعلیم وتعلم احکام اسلامی را بر تمام مسلمین فرض قرار می‌دهد. خداوند متعال می‌فرماید: «پس چرا ازهرطائفه‌ی گروهی آماده نمی‌شود تا در احکام اسلامی مهارت پیدا کند وپس از برگشت به سوی قومش آنها را از (عذاب خداوند) بترساند». (توبه: ۱۲۲)

وهمواره گروه‌هایی ازمسلمین پس ازتحصیلات علوم اسلامی به سوی قوم خویش بازگشته و آنها را درس اسلام داده اند ولی دولت های اسلامی سد راه دعوت آنها شده اند وعلیه آنها به جنگ پرداخته اند وبه خاطرجلب رضایت استعمارگران و پیروی ازطاغوت ها و اظهارمؤدت ودوستی با دشمنان اسلام، ازپیشرفت دعوت اسلامی جلوگیری نموده اند و جماعتی ازمردم به جای اینکه عدم رضایت خود رابه دولت های اسلامی اعلام کنند بر عکس به وضع آنها راضی شده اند وبرای نابودی اسلام ونهضتهای اسلامی شریک دولت‌ها گشته قدرت وعزت و حیثیت خود را از دست داده اند و برده زورگویان و استعمارگران و مسئولان کشورها شده اند و موجب از دست دادن رزق و قدرت کرامت و آزادی خویش گشته اند و علت همه بدبختی‌ها این است که مسلمانان مکتب نیرومند و با عزت خویش را ترک کرده اند و اگر امروز هم مجدداً به سوی آن باز گردند، قدرت، عظمت و آبروی از دست داده خویش را باز خواهند یافت.

بلی! جماعتی از مسلمانان درغفلت وبی‌تفاوتی مهلکی به سرمی‌برند ازدین ودنیا و حتی از خویشتن بی‌خبرند و اگر روزی چشم های حقیقت بینشان باز گردد خواهند دانست که بعلت انحراف و دوری از تعلیمات قرآن کریم در دنیا و آخرت چقدرخسارت دیده اند.

## مسئولیت کشورهای اسلامی

کشورهای اسلامی از همه بیشتر مسئول ناهنجاری وبی نظمی قوانین اسلامی و مسئول ذلت وخواری مسلمین‌اند زیرا آنها نظام اسلامی را از شئون زندگی مردم مسلمان دور کرده اند و بر سر آنها نظام هایی نامشروع وغیر الهی مسلط نموده اند. آری! کشور های اسلامی مسلمانان را از هدایت ربانی باز می‌دارند و آنها را به سوی ضلالت و گمراهی نظام اروپایی رهنمون می‌سازند و درمیان آنها قوانین ساختگی را اجرا می‌کنند و نظام اسلامی را رها می‌سازند، وحکومت های اسلامی از نظام سیاست اداره و اصول اسلامی خارج شده اند و درآنها آزادی، مساوات و عدالت اجتماعی وجود ندارد وتمام واجبات اسلامی را طرد نموده اند، درمیان مسلمین تعاون وتکافل وتراحم وجود ندارد و محرمات اسلامی از قبیل ظلم، بهره کشی و فئودالی را تشویق نموده اند وجامعه اسلامی ما را بر فساد وافساد فسق و عصیان، تن پروری وتجاوز استوارکرده اند وحکومت های اسلامی مسلمانان را نمی‌گذارند تا دین خود رابیاموزند وپروردگار خویش را بدانند و واجبات خویش را به جای آورند وحکومت های اسلامی، با دشمنان اسلام بجای دشمنی دست رفاقت و دوستی داده اند و بجای نافرمانی از آنها اطاعت و پیروی می‌کنند و دولت های اسلامی باعث این همه ضعف و ذلت، فقر وبهره کشی، فساد وتجاوزمسلمین قرارگرفته اند.

**مسـئولیت دولتمـردان کشـورهای اسلامی**

دولتمـــردان کشـــورهای اســـلامی وظائفشـان نسـبت بـه وضـع فعلـی اسـلام ومسـلمین از همـه سنگین‌تراسـت، درتمـام مسائل کوچـک و بـزرگ مسـئول انـد، ممکـن است قـوانین سـاختگی از آنهـا درگذرکنـد امـا اسلام هیچگاه صرف نظر نمی‌کند و درتمـام مســائل کوچــک و بــزرگ آنــان رامســئول می‌دانـد، ای مسئولان کشـورهای اسـلامی! حکومت و قدرت در دست شما است وشـما می‌توانید اسلام را مجدداً به عظمت سـابقش برگردانیـد ولـی شـما دانسـته یـا نادانسـته بـه پیروی ازاسلاف وگذشتگان خویش همه نیـرو وتوان خود را علیه اسلام صرف می‌کنید واین اوضاع اسلام را ضعیف وپیروان آن را از تقدم وپیشرفت باز می‌دارد و بالآخره ضعف اسـلام، ضعف شماست وقدرت اسلام قدرت شماسـت و اگـر شـما از افـراد و رعایـای دولتـی قـوی ونیرومند باشید این بسیار برایتـان بهتـر اسـت تا آن که پادشاهان و امیـران رؤسـای دولتـی ضعیف وناتوان بوده که یک مسـئول کوچـک از سوی استعمارگران بـر سرشـما امـر و نهـی کند دولت هایی را نابود و دولت دیگـری را بـه وجود بیاورد و دستورش تخت ریاست ها را بـه لـرزه در آورده و قـدم هـای رؤسـا و امـراء را متزلزل سازد.

ای مسئولین کشورهای اسلامی! شـما متفـرق هسـتید ولـی خیـر اسـلام در وحـدت قوای شماست و شـما ازیکـدیگر دور وجـدا از هم هستید ولی نفع شما وخیر اسـلام در ایـن است کـه بـا هـم وحـدت تعـاون و همکـاری داشـته باشـید واگـر شـما مطیـع و دوسـت همـدیگر باشـید، بسـیار بهـتر از آن اسـت تـا مطیع و دوست استعمارگران باشید.

ای رهبران اسلامی: شما قبـل از همـه مسلمان هستید پـس اسـلام را در رأس تمـام امــور و برنامــه‌ها قــرار دهیــد و آن را بــر خواهشـات نفسـانی خودتـان حـاکم گردانیـد، اسـاس و پایـه‌های حکومـت خویشـتان را بـر قوانین اسلامی اسـتوار سـازید زیـرا کـه شـما زندگی جاودانی ندارید و روزی خواهیـد مـرد و بعد از مرگ بهشت است یا آتش دوزخ مـال و خانواده به شـما نفعـی نمی‌رسـاند بلکـه عمـل صالح و قیام به اوامرخداوند است کـه شـما را یاری می‌نماید و از ایـن چـه بهـتر کـه تـاریخ شهادت می‌دهد کـه شـما همـه بـرای دعـوت حکومت اسلامی با هـم دیگـر همکـاری کـرده اید و انگیزه نامشروع سـلطه و ریاسـت طلبـی شـما را از قیـام حکومـت اسـلامی بـه تـأخیر نینداخته است.وقیام حکومـت اسـلامی فقـط به قوه اراده وپیـروزی بـر خواهشـات نفسـانی نیاز دارد واگر شما بر نفس تـان غلبـه حاصـل کردید آن وقت پیروز خواهید شد و اما اگـر در مقابـل منـافع شخصـی همچـون، حکومـت و ریاست سست و ضعیف شدید آن وقـت تمـام مسلمین در تفرقـه و سسـتی، ضـعف و ذلـت زنـدگی می‌کننـد استعمارگران و قـدرت هـای بزرگ بر سر شما و آنها حکومت و فرمـانروایی می‌کنند و باعث ترس و وحشت می‌شوند شـما وآنها را ضد یکدیگرتحریک کرده بهـره کشـی می‌نمایند، زیرا استعمارگران درست دریافتـه اند که قدرت همیشه بـا وحـدت و یکپـارچگی همراه است وبس.

برای دریافت سـلطه وحکومـت، القـاب وتاج‌ها حرص نورزید زیرا همین حرص است که باعث ضعف وذلت روحی مسـلمین گشـته است وآنها را به دولت هایی ضعیف ونـاتوان و کـوچکی تقسـیم نمـوده اسـت تاجـایی کـه نمی‌توانند درمقابل دشمنان، ازخود دفاع کننـد و حق مسلم خویش رابگیرند ونیز مسـلمین بـا کثرت عدد و وسعت زمین و کثرت مواد خام و نیـروی انسـانی و همـواری اسـباب قـدرت و عظمت امروز در تمام جهان ضعیف و ذلیل و ناتوان ترین انسان روی زمین نزد دولت هـای استعمارگر به شمار می‌آیند و اگر شما حریص منـافع ومناصـب والقـاب هسـتید بـاز هـم بهرشکلی که شده با همـدیگر متفـق و متحـد شـویدتا تمـام مسـلمین جهـان (در مقابـل استعمارگران شرق وغـرب) یـد واحـد ونیـروی واحدی قرارگیرند.

ای رهـبران کشـورهای اسـلامی: ایـن همه لقب ها ومنصب ها نمی‌تواننـد در مقابـل خداوند شما رابی‌نیاز سازند بلکه خداونـد شـما وگذشــتگان شــما رامــورد بازخواســت قــرار می‌دهد و از وضع فعلی اسـلام ومسـلمین کـه درکشـورهای شـما نظـام آن مهمـل وتعطیـل شده و مسلمانانی که شما باعث تفرقه وحدت و ضعف قدرت و سـبب نـابودی حکومـت آنهـا گشـته ایـد، خواهـد پرسـید شـما وگذشـتگان شما، مسلمانان را درتمام جهان الگـو ونمونـه تفرقـه، نـاتوانی، بی‌شرمـی وطمـع کـاری کـه مردان شرافت‌مند را ذلیل وکمر شیر مـردان را کج و بینی رهبران متعهد رابـه خـاک می‌مالـد معرفی نموده اید.

# دامیراطاعت داحساد شواو فقهي په رڼاکي

مفتي ګل محمد سعید

لابدللشـــاة مـــن راع يـــدبرها
فكيـف بالنـاس ان كـانوا بـلاوال

دامیر په رعیت ډیرحقـوق دي چـې په ځای کول یی پـه مسلمانانوباندې لازم اوضروري دي ،کـــه بـــالفرض ددې حقوقورعایت ونـه کـړای شي نومسلمانان کامیابي نشي ترلاسه کولای او لـه ذلت سره مخـامخ کیـږي .لـه دې حقوقوڅخـه لـومړی حـق دامیراطاعـت دی چـې پـه مسلمانانوباندې واجب اولازم دی.

الله تعـالی فرمـایلي دي یاأیهاالـذین آمنواأطیعـواالله وأطیعواالرسـول وأولـی الأمرمنکم فان تنازعتم فی شئ فردوه الی الله والرسول ان کنتم تومنون بالله والیـوم الاخرذلک خیروأحسن تاویلا(سورة النساء اية ۵۹).

ژبـاړه: ای مومنانو!دالله،رسـول اوهغوکسانواطاعت وکـړئ چـې ستاسـې څخـه دامرخاونـدان وي ،بیاکـه ستاسـې ترمنځ په کومه چاره کې شخړه پیښبه شي، نوهغـه دالله اورسـول لـوري تـه محولـه (وړاندې) کړئ.که تاسې پـه ریښـتیاسره پـر الله اوداخـرت پـه ورځ ایـمان لرئ،همـدادکاریوه سـمه طریقـه ده اودعاقبت په اعتبار هم غوره ده.

ددې ایت پـه تفسیرکې مفسـرینو لیکلي دي چې مرادله اولوالامرنه حـاکمان اوامیران دي. امام طبري ویـلي دي:أولـی الاقوال فی ذالک بالصواب قول مـن قـال هم الامراءوالولاة یعنې بهـتره قـول دادی چې مرادله اولوالامرنـه حـاکمان اووالیـان دي. اطاعـت دامیرنـه اطاعـت پـه مبـاح اموروکې مراددی نه په شرعي امـوروکې ،ځکه که چیرې اطاعت یواځې په شرعـي امـوروکې مـرادشي نوداولوالامرخـاص کولوته څه ضرورت نه ؤځکـه مسلمانان چې پـه شرعـي امـوروکې اطاعـت کـوي داخودالله تعـالی اودرسـول الله صلی الله علیه وسلم اطاعت دی نـه دامیراطاعـت نومعلومه شوه داخبره چې اطاعت په مباح امـوروکې مراددی.فقهـاء کرامـوویلي دي چې اطاعت دامیرپـه هغوکـارونوکې چـې رواوي واجب دی. ابن عابدین رحمـه الله تعـالی دردالمحتـار علـی الـدر المختار(ص۶۲۴ج۱) پـه بـا ب الاستسقاء کـې لـیکلي دي: (تنبیـه)اذاامرالامام بالصیام فـی غیرالایـام المنهیـة وجـب، لماقدمناه فی بـاب العیـدین مـن ان طاعـة الامام فی مالیس بمعصیة واجبة .یعنې چې کله امام خلکوته امروکړي چې روژه ونیسی په دې شرط چې داهغه ورځې نـه وي په کوموکې چې روژه نیـول منـع دي اودالامریی هم دیومصلحت پـه نیت کـړی وي نوپه خلکوروژه نیول واجب دی.امـام سرخسيـــ پـــه شرح دالسـیر الکبیـــر (ص۱۱۲ج۱) کـــې لـــیکلي دي:أن الامیراذاأمرهم بشئ لایدرون أینتفعون بـه أم لا؟فعلـیهم أن یطیعـوه :لأن فرضـیة الطاعـة ثابتـة بـنص مقطـوع بـه یعنـې

امیرچې کله خلکوته په یوکارامروکړي په داسې حال کې چې دوی نه پوهیږي چې په دې کارکې زمونږگټه ده اوکه زمونږنقصان دی بیاهم په دوی واجب دی چې دامیراطاعت وکړي ځکه چې داطاعت فرضیت په قطعي دلیل ثابت دی.همدارنگه فقهاء کرامولیکلي دي: أن حکم الحاکم رافع للخلاف فی الامورالمجتهدفیهافمتی صادف أمره فصلامجتهدافیه نفذووجب اتباعه ولوکان الرجل لایری رأیه فی تلک المسئلة یعنې چې کله په یوه اختلافي اجتهادي مسئله کې امیرفیصله وکړي نودهغه په فیصله عمل کول واجب دي ،اختلاف ختمیږي او دامیرپه فیصله دغه مسئله اتفاقي گرځي اگرکه دافیصله ددې سړي دنظرموافق هم نه وي .ابن عابدین دردالمحتار علی الدر المختار(ص٦١٥ج١) په باب العیدین کې ویلي دي : ........قال فی الظهیریة وهوتاویل ماروی عن ابی یوسف ومحمدفانهمافعلاذلک لان هارون امرهماان یکبرابتکبیرجده ففعلاذلک امتثالاله لامذهبا واعتقادا قال فی المعراج لان طاعة الامام فیمالیس بمعصیة واجبة .یعنې چې کله امیرالمومنین هارون رشید امام ابویوسف اوامام محمدرحمهما الله تعالی ته امروکړچې داخترپه لمانځه کې دابن عباس رضی الله عنهمادقول مطابق تکبیرات زوایدولولی هغوی دواړویی امرومانه اگرکه دوی دابن مسعودرضی الله عنه په قول عمل کاوه،دوی دواړو دامیرالمومنین خبره ومنله اوخپل مذهب یی پریښود.

داطاعت په هکله یوڅواحادیث:قال النبی صلی الله علیه وسلم: السلطان ظل الله یأوی الیه کل مظلوم من عباده فاذاعدل کان له ا لاجر وعلی الرعیة الشکر .یعنې بادشاه دالله تعالی رحمت دی ،دالله تعالی مظلوم بندگان ده ته پناه وړي ،چې کله بادشاه عدل وکړي نوالله تعالی به اجرورکړي اوپه رعیت یی شکرلازم دی.

عن ابی هریرة رضی الله عنه قال:قال رسول الله صلی الله علیه وسلم: من أطاعني فقدأطاع الله ومن عصاني فقدعصی الله ومن یطع الامیرفقداطاعني ومن یعص الامیرفقدعصاني (رواه البخاری ص٢٩٧٥ ومسلم ص ١٨٣٥واحمد ص٢٤٤ج٢والنسایی ص١٨٤ ج٢وابن ماجه ص٢٠٥.)

ژباړه:نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي چاچې زمااطاعت وکړهغه یقینادالله تعالی اطاعت وکړاوچاچې زمانافرماني وکړه هغه یقینا دالله تعالی نافرماني وکړه اوچا چې دخپل امیراطاعت وکړهغه یقینا زمااطاعت وکړاوچاچې دامیر نافرماني وکړه هغه یقینا زما نافرماني وکړه.

کوم خلک چې دامیرنافرماني کوي هغوی دې دالله له قهرنه وویریږي،ولې چې داپه حقیقت کې درسول الله صلی الله علیه وسلم نافرماني ده چې څومره خطرناکه اوخوفناکه ده ،اوکوم خوش نصیبه خلک چې دامیراطاعت کوي هغوی ته دې مبارک وي ولې چې داپه حقیقت کې درسول الله صلی الله علیه وسلم اطاعت کوي.

عن انس رضی الله عنه قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم: اسمعوا واطیعوا وان استعمل علیکم عبدحبشی، کأن راسه زبیبة . (رواه البخاری ص١٠٥٧ج٢)

ژباړه:رسول کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي:دامیرحکم ته غوږشی،اودهغه اطاعت وکړی،که څه هم په تاسوباندې یوحبشي مریی امیرمقررشي،چې سریی دممیزپه څېروي.

عن ابی هریرة رضی الله عنه قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم:علیک السمع والطاعة فی عسرک ویسرک ومنشطک ومکرهک واثرة علیک . (رواه مسلم ص١٢٤ج٢والنسایی ص ١٨٠ ج ٢ وابن حبان ص ٤٥٦٢ج١٠ واحمدص٣٨١ج ٢ وابن ماجه ص٢٠٥)

ژباړه:رسول اکرم صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي:دامیرحکم ته غوږشی اودهغه اطاعت کوی په اساني اوسختي

کې،په خوشالۍ اوغم کې،اوپه هغه وخت کې هم چې بل چاته پرتاسوترجیح ورکړی شي.له دې حدیث نه داخبره څرګنده شوه چې دامیراطاعت په هرحال کې ضروري دی.که داحکم اسانه وي اوکه سخت وي ،خوښ وي اوکه ناخوښ،بلکه په هغه وخت کې هم چې سره دحق داری بل چاته پرتاسوباندې ترجیح ورکړی شي.

عن عبدالله بن عمررضی الله عنهماقال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم:من بایع امامافأعطاه صفقة یده وثمرة قلبه فلیطعه ان استطاع،فان جاء اخرینازعه،فاضربواعنق الاخر. (رواه مسلم ص١٢٦ج٢)

ژباړه:چاچې له امام سره بیعت وکړاوخپل لاس یې دهغه په لاس کې کېښود،اوخپل دزړه محبت یې دهغه په خدمت کې وړاندې کړ،نوهغه دې ترخپل وسه پورې دامیراطاعت کوي،اوکه چیرې یوبل کس دامیرسره پرامارت جګړه پیل کړي نودهغه سرغوڅ کړی.

عن العرباض بن ساریة رضی الله عنه أن رسول الله صلی الله علیه وسلم وعظهم یوما،موعظة بلیغة بعدصلاة الغداة ذرفت منهاالعیون ووجلت منها القلوب، فقال رجل یارسول الله ان هذه لموعظة مودع،فماتعهدالینا؟قال:أوصیکم بتقوی الله والسمع والطاعة. (رواه الترمذي ص٩٦ج٢ وابوداود٢٨٧ج٢)

ژباړه:عرباض دساریه زوی ویلي دي چې یوه ورځ دسهارله لمانځه وروسته نبی کریم صلی الله علیه وسلم داسې یووعظ وکړچې سترګوبهیدل پیل کړل اوزړونه وریږدیدل یوچاعرض وکړچې یارسول الله داخوالوداعي وعظ معلومیږي ،نوتاسومونږته (چې له دنیاڅخه رحلت کوی)کوم(خاص)حکم کوی.دوی وفرمایل :زه تاسوته دالله تعالی له نافرمانۍ څخه دځان ساتلووصیت کوم،اودامیرحکم ته دغوږنیولواودهغه داطاعت وصیت کوم.

عن حارث الاشعری رضی الله عنه أن رسول الله صلی الله علیه وسلم قال أناامرکم بخمس کلمات أمرنی الله بهن: السمع والطاعة والجماعة والهجرة والجهاد (رواه الترمذي ص١١۴ ج٢واحمدص٣۴۴ج۵].

ژباړه:نبی علیه السلام فرمایلي دي زه تاسوته په پنځه خبروحکم کوم،دامیرحکم منل،دامیراطاعت کول،په جماعت(ټولي ) کې اوسیدل،دهجرت اوجهاد.

عن أبی زررضی الله عنه قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم:اسمع وأطع لمن کان علیک .(کتاب السنه لابن عاصم ص١٠۵۵)

ژباړه:حضوراکرم صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي کوم امیرچې پرتاسومقررشي دهغه خبرې ته غوږ شی،اودهغه اطاعت وکړی.

عن أم حصین رضی الله عنهاقالت حججت مع رسول الله حجة الوداع (الی) وکان فیمایقول (صلی الله علیه وسلم):ان أمرعلیکم عبدمجدع أسودیقودکم بکتاب الله:فاسمعواواطیعواثم قال:هل بلغت.یعنې :ام حصین وایی چې دنبی علیه السلام سره مې یوځای حج (حجة الوداع) وکړ،په دې وخت کې نبی علیه السلام وعظ وکړاوپه وعظ کې داخبره هم وکړه چې دامیراطاعت وکړی اګرکه یوداسې مریی په تاسوحاکم وي چې نسب یې خسیس اورنګ یې تور وي خوچې تاسې ته دالله تعالی په کتاب (قران کریم ) باندې فیصلې کوي . (اخرجه مسلم ١٢٩٨/٣١١/٣١٢والطبرانی ص ٣٧٧والبیهقی ص١۵۵ج٧ والترمذی ١٧٠٦)

عن ابن عباس رضی الله عنهما:أن رسول الله صلی الله علیه وسلم قال:من کره من أمیره شیئافلیصبر،فانه من خرج من السلطان شبرا مات میتة الجاهلیة .(لخرجه البخاری ص٧٠۵٣ والمسلم ١٨۴٩ واحمدص٢٧٧ج ١)

ژباړه:نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي دچاچې دخپل امیریوشی ناخوښ شي نودې صبروکړي:ولې چې یوڅوک دخپل امیرداطاعت نه لویشت هم

ووزي نوهغـه بـه دجاهليـت پـه مـرگ مړشي.

عن حذيفة رضى الله عنه عـن النبـى صـلى الله عليـه وسـلم قـال :مـامن قـوم مشواالى سـلطان الله ليـذلوه الاأذلهـم الله قبل يوم القيامـة . (اخرجـه البـزار۱۵۹۴ والهيثمى ص۹۰۸۹)

ژباړه:نبى كريم صلى الله عليه وسلم فرمـايلي دي :كـوم خلـک چـې دحـاكم اواميرپه ذلت پسې روان شي الله تعالى به ترقيامـت مخكـې هغـوی خواراوذليـل كړي.

عن ابـن عبـاس رضـى الله عنهماقـال قال رسول الله صلى الله عليـه وسـلم يـوم من امام عادل أفضل من عبادة ستين سـنة وحديقام فى الأرض أزكى من مطـرأربعين عاما .(الترغيب والترهيب ص ۲۶۴ج۳)

ژباړه:حضـوراكرم صـلى الله عليـه وسلم فرمايلي دي:يوه ورځ دعادل امام پـه اطاعت كې له شپيتوكلونوترعبادت بهـتره دى،اوپـه ځمكـه كـې دالله تعـالى لـه حدودونــه يوحدقايميــدل د ځلويښــتو كلونوله باران نـه سـودمنداودبركت باعـث دى.

### دامير دنافرماني زيانونه

هركلــه چــې داميرنافرمــاني وشي اودهغه خبره ونه منل شي نه يواځې داچې داخرت تاوان دى بلكه دنيـاكې هـم لـوى زيان لـري هغـه زيـان داچـې دغـه صـف اوتولگى بـه لـه شكسـت سره مـخ كيـږي اوددوی دښــمن بــه پــه دوی غلبــه حاصـلوي، پـه دې خـبره كـې اوږدبحـث كيږي خوداختصارپه پام كـې نيولـوسره دلته يى يوه بيلگه راوړو چې داحدواقعه ده .داحاديثوپـه كتـابونوكې راغـلي دي چې كله نبى كريم صلى الله عليه وسـلم داحدميـدان تـه دجنـگ پـه نيـت روان شونودجنگ له شروع كيدونه مخكې يى پنځوس كسان په جبل رماة باندې مؤظـف كـړل ،عبـدالله دجبيـرزوی يـى دهغـوی اميروټاكه اوورته يـى وويـل تاسوبه پـه همدې ځای كې اوسيږئ ،له دې ځـای نـه به نه راكوزيږئ ،كه مونږپردښـمن غالـب شواوكه دښمن پرمونږغالب شي.كلـه چـې جنـــگ شروع شونومســـلمانانوكاميابي ترلاسه كړه اوكفاروشكست وخوړ،په دې وخت كې دعبـدالله بـن جبيرملگروويـل: مـونږهم كوزيږواوپـه غنيمـت كـې برخـه اخلو. عبدالله بن جبيرورته وويل: اياتاسـو هغـه خـبره هيـره كـړې ده چـې رسـول الله صـلى الله عليـه وسـلم تاسـې تـه كـړې وه؟هغوی ورته وويل چې هغه خودجنـگ دوخـت خـبره وه اوس خوجنـگ پـای تـه ورسيد،دعبدالله بن جبيرخبره يى ونه منلـه اوټول له خپل ځای نه راكوزشول يـواځې يـــوولس كســـان لـــه ده سره پـــاتې شـول،كفارچې دتيښـتې پـه حـال كـې ونوويى ليدل چې دااړخ خالي ده اويواځې يوولس كسان پـاتې دي نـويې دوهـم ځـل بياحملـه وكـړه اولـه مسـلمانانوځخه يـى اوياكسان شهيدان كړل.دالـوی مصيبت چې مسلمانانوته ورپيښ شويواځنى علت يـى داميرامرنــه سرغړونــه وه.الله تعـالى فرمـــايلي دي:ولقدصـــدقكم الله وعـــده اذتحسونهم باذنه حتى اذافشلتم وتنـازعتم فى الامروعصيتم من بعدمااراكم ماتحبون منكم من يريدالدنيا ومنكم من يريـدالاخرة ثم صرفكم عـنهم ليبتليكم ولقـدعفاعنكم والله ذوفضـــل علـــى المـــؤمنين .(ال عمران:۱۵۲)

ژبـاړه:الله تعـالى چـې (دمرسـتې اونصرت)كومه وعده ستاسې سره كـړې وه ،هغه خويى پوره كړه .لـومړی خودهغـه په حكم همداتاسې دوی وژل :خوكله چـې تاسې همت له لاسه وركړاوپه خپل كاركې موسره اختلاف وكړاوله هغه وروسته چـې الله تعالى تاسې تـه هغـه شـى دروښـوده چې تاسې ييى په مينه كې راگيروی،يعنې دغنيمـت مالونــه .تاسـې دخپـل مشرـله امرڅخـه غـاړه وغړولـه ،ددې لپـاره چـې ستاسې څخه ځينـې ددنياغوښـتونكى ول اوځينـوداخرت هيلـه لرلـه :نـوالله تاسـې دكافرانوپـه مقابلـه كـې پرشاوتمبولاسـت ،چې پرتاسې ازميښت وكـړي .اوحقـه داده چـې الله بيـاهم تاسـې تـه بخښـنه وكـړه . اوالله پرمؤمنانودپيروزنې ډيرلوی نظرلري.

نوربيا....

# سوله د وسیلې په توګه

ش. شاهین

ګواکې دوی غواړي د افغانستان مسله افغانانو ته پرېږدي او دوی په کې مداخله نه کوي.

په دې وروستیو کې د سولې په نوم هڅو یو ځل بیا زور اخیستی دی. یو ځل بیا د امریکا په غوښتنه په کابل او اسلام اباد کې د سولې په نوم خبرې اترې کوي.

ځلورمـــــه

لسیزه هم نږدې پوره کېدونکې ده، خو د جګړې لمبې لا هم پر افغانانو را تاوېږي. سپین ږیري، سپین سرې، ځوانان، پیغلې، ماشومان، حیوانات، نباتات او نور چاپېریال او موجودات ټول له جنګه اغېزمن شوي دي. که څه هم جګړه پر افغانان تپل شوې ده ، خو افغانانو د ارزښتونو لپاره جګړه وکړه او لا هم د ارزښتونو لپاره جګړه کوي. خو له دې هېڅوک هم سترګې نه شي پټولی چې له سرو لښکرو سره له پرونۍ افغان جګړه هم لوېدیځ ګټه واخیسته او له نننۍ جګړې هم د زمانې ستر ښکېلاک امریکا ګټه اخلي. له همدې امله جګړه ده، وینې دي، وژنې دي او امریکا پرې خپلو موخو ته د رسېدو لپاره هڅه کوي.

د امریکا له خوا په پلان شوې او پیل شوې جګړه کې اوس داسې ښکاري چې دوی خپله له هغه څه سره مخ شوي چې نه یې غوښتل، نو ځکه غواړي چې د جګړې ډول بدل کړي. د امریکا لپاره به جګړه ختمېږي او د سولې په نامه به یوه ننداره کېږي، خو جګړه به دوام کوي. بیا به هم وینې، وژنې او جګړې وي. د افغانستان جګړه د امریکا لپاره تر اټکل زیاته اوږده شوې او د امریکا د پلان او هڅې پر عکس یې پراخ مالي او ځاني زیانونه درلودل.

امریکا تر اوسه پورې په جګړه ټینګار کاوه. ښایي امریکا په جګړه کې ډېر څه تر لاسه کړي وي، خو هغه څه چې په جګړه کې یې تر لاسه نه کړل، اوس یې غواړي د سولې په نوم په سیاسي معامله کې تر لاسه کړي. له همدې امله امریکا داسې ښیي چې . له همدې امله ښایي د سولې په نوم نوې هڅې لا زیات زور واخلي.

د معاصرو ښکلاګرو په ځانګړي ډول د امریکا تاریخ ته په کتو سره سړی مومي چې تر جګړې د دوی سیاسي لوبه خطرناکه او مضره وي. هغوی چې یرغل کوي، هم خپل دښمن له منځه وړي، خو هغوی چې د جګړې له ډګره په شاتګ کوي او خبرو مېز ته راځي، نو بیا داسې لوبه کوي چې په جګړه کې ټول شوی تاوان جبران کړي او دښمن په یوه داسې سیاسي لوبه کې را ګېر کړي چې دوی په کې نه یوازې خپله ماته پټه کړي، بلکې ګټې یې هم خوندي شي.

اوس دوی همدا کار په افغانستان کې هم کوي. دلته خو امریکا له یوه اړخه په جګړه کې پراخ مالي او ځاني زیانونه ولیدل او تاریخي شکست سره مخ شوه. دوی یو مخ تښتي نه ، له همدې امله یې خپلې پوځي دایمي اډې پرېښودې، خو له دې امله چې په نوره نړۍ کې ښکلتیا ته اړتیا وه، نو یې دلته یوه سیاسي لوبه پیل کړه.

امریکا غواړي دلته دوه کارونه وکړي، لومړی دا چې غواړي د سولې تر نامه لاندې داسې هڅې وکړي چې د خلکو په منځ دجانب مقابل ستنې کمزورې کړي، چې ګواکې معامله راسره کوي ، که څه هم طالبان تراوسه سخت دامریکا دغه دام او لوبې ته ځیر دي . له بل لوري غواړي چې افغانانو ته وښیي چې که څه هم مونږ په جګړه کې نه یو خو بیاهم طالبان له افغاني اردو سره جنګیږي .

ددې ترڅنګ امریکازیار وویست چې داربکیانو اومحلي ملیشو ترڅنګ پخوانی ټلواله دجنرال دوستم ، قومندان عطا په شکل کې یوځل بیا راژوندی اودطالبانو په وړاندې یې جګړې ته ودروي ، خو هغوی دواړو په شمال کې له طالبانو سره په ړومبیو نښتوکې کلکه ماته ولیده او له صحنې یې پښې سپکې کړې ، په دې ورستیو کې ضیا مسعود هم په شمال کې یوې غونډې ته وویل چې له طالبانو سره نوې جګړې ته اماده ووسي ، څکه چې امکانات او پیسې امریکا ورته ورکوي ، خو داسې ښکاري چې ضیامسعود هم په دغه پروژه کې ناکام دی ، څکه دشمال ولس اوس په دغو څیرو هیڅ باور نلري او بې اعتباره یې شمیري .

. امریکا فکر کوي چې په دې سره به هم په خپلو اډو کې خوندي او هم به جګړه روانه وي، څکه په سیمه کې د جګړې دوام د امریکا د ګټو د تر لاسه کولو لپاره اړین دی. له بل لوري داعش را شین کیږي چې له شک پرته په سیمه کې د امریکایي ګټو لپاره د یوې نوې جګړې څرک ترې معلومیږي. بل خوا له امریکا سره جنګېدونکي ځواک که څه هم په جګړه کې ډېرې قربانۍ ورکړې، زندانونه پرې ډک شول، خوسرېې ورته خم او ټیټ نکړ ، اوس امریکایان دسیاسي حربو له لاري فکر کوي چې ګټه ترلاسه کړي ، خو دچارو دماهرینو په اند طالبان په سیاسي میدان کې هم تردې دمه پیاوړي اودبرلاسي موقف درلودنکي ښکاري ، څکه ځان داسې په اسانی سیاسي میدان ته نه ورغورځاروي ، بلکې په ډیر احتیاط ګامونه پورته کوي .

چې په قطر هیواد کې یې دپګواش په ناسته کې طالب مرکچیانو دخپل حضور او دریځ په ټکو ځان دیوباثباته، ځواکمن او حق په جانب جهت په شکل کې نړۍ ته وروښود چې پردوی جګړه تحمیل شوي ، په کابل کې یو غیرمشروع اداره امریکا یانو ټومبلې اوپه عین حال کې دافغانستان دنجات او سوکالی یواځیني لار داده چې امریکایي قواوېی له هرډول قید اوشرط پرته افغانستان ترک او ووځي .

**( تر ټولو نزدي وخت د الله پاک په دربار کې )**

**حضرت علی رضی الله تعالی عنه و یلی دی چې رسول الله صلی الله علیه و سلم فرمایلی دی بنده تر ټولو نژدې خپل رب ته دسجدې په حالت کې وي . نو تاسو د سجدې په حالت کې ډېرې دعاوې کوی [رواه مسلم].**

**د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله تعالی عنه خوږه وینا**

**بدبخت انسان هغه دی چی له مرگ څخه وروسته یی هم گناه ژوندۍ وي.**

**تعجب کوم چی دا ضیعف انسان څنگه د قوی الله جل جلاله په نافرماني جرات کوي.**

**رښتنی ځوانمری دا ده چی یو انسان د بل انسان تکلیف په غاړه واخلي.**

# «دزد» را رها کردند و «پرونده» را بازداشت

م/ عبدالحکیم عثمانی

آیا اگر مقامات قضایی و مسئولین رسیدگی به جرائم، پرونده‌ها را بازداشت کنند و جنایتکاران را رها نمایند مفاسد اجتماعی ریشه‌کن می‌شود؟

آیا با آزاد گذاشتن قاتل و دربند نمودن اولیای مقتول جلوی قتل و کشتار گرفته می‌شود؟

آیا با تعقیب مظلوم و ستمدیده و رها نمودن ظالم و ستمگر ظلم ریشه‌کن می‌شود؟

و آیا معقول است پزشکان یک جامعه به‌جای معالجه بیماران و تشخیص بیماری‌شان، برای کشتن‌شان آستین بالا زنند؟

و اساسا «علت» را گذاشتن و به «معلول» پرداختن، شکارچی را رها کردن و به قربانی پرداختن با کدامین منطق و فلسفه قابل توجیه است؟

سیاستی که امروز در مراکز جهانی قدرت، سازمان‌های بین‌المللی و ائتلاف‌های منطقه‌ای و جهانی دنبال می‌شود و چندین دهه است که در گوشه‌وکنار جهان به‌ویژه در خاورمیانه اعمال می‌شود؛ سیاست سرکوب مظلوم و نابودی ستمدیدگان است، سیاست نسل‌کشی و تصفیه‌حساب‌های قومی و مذهبی است، سیاست تخریب تأسیسات و زیربناهای شهری و راه‌های مواصلاتی و مراکز بهداشتی و درمانی است.

سازمان ملل و شورای امنیت که تابع سیاست‌های قدرت‌های جهانی هستند در طول عمر خودشان یک مورد هم وجود ندارد که به نفع مظلوم و رفع بحران در کشورهای اسلامی اقدام کرده باشند. شعارهایی همچون آزادی و دموکراسی، عدالت و مردم‌سالاری و رعایت حقوق بشر را دستاویز خویش قرار می‌دهند، اما هرگاه نوبت به مسلمانان می‌رسد این شعارها فراموش می‌شوند. قضیه فلسطین یکی از طولانی‌ترین بحران‌های جهان اسلام است که با دخالت غرب و امریکا و حمایت از یهودیان اشغال‌گر هر روز بر روند کشتار و کودک‌کشی و ادامهٔ شهرک‌سازی پافشاری می‌شود، اما نه‌تنها تا کنون اقدامی جدی برای حل قضیه فلسطین انجام نگرفته است، بلکه با وقاحت تمام از سیاست‌های ضد انسانی رژیم صهیونیستی حمایت می‌شود. یک یهودی هنوز به قتل نرسیده است که فرد مهاجم کشته می‌شود، اما اگر ده‌ها فلسطینی توسط یک یهودی کشته شوند پرونده قاتل هیچ‌گاه بررسی نمی‌شود. یهودیان افراطی به بهانهٔ دفاع از خود، زنان و کودکان را به خاک و خون می‌کشند. شهر غزه را با موشک‌های فسفری بمباران می‌کنند، اما در مقابل، گروه‌های مبارز فلسطینی وقتی به دفاع از خود اقدام می‌کنند به عنوان "تروریست" معرفی می‌شوند.

در افغانستان پس از روی کار آمدن طالبان، قدرت‌های جهانی و منطقه‌ای با چراغ سبز شورای امنیت و سازمان ملل به بهانهٔ نجات مردم افغانستان و مبارزه با تروریست به این کشور جنگ‌زده حمله کردند، هزاران انسان را کشتند و افغانستان را تبدیل به ویرانه نمودند، مجالس عروسی و عزای مردم بی‌گناه را بمباران کردند،

بیمارستان‌ها و مراکز درمانی را با بیماران و پرسنل درمانی به آتش کشیدند، بذر نفاق و دودستگی را در افغانستان کاشتند، ملت را به جان همدیگر انداختند، تعصبات قومی و مذهبی را شعله‌ور نمودند به‌طوری‌که تا هنوز این وضعیت ادامه دارد

در عراق نیز به بهانهٔ وجود سلاح‌های کشتار جمعی و حمایت از ملت عراق، از زمین و آسمان به این کشور حمله‌ور شدند و نظام حاکم را سرنگون کردند، اما این حملات آغازی تازه بر بدبختی‌های ملت عراق بود؛ آنها با ائتلاف و همکاری برخی گروه‌های متخاصم در عراق، جنگ مذهبی و قبیله‌ای راه انداختند، به‌گونه‌ای که تصفیه‌حساب‌ها تازه شروع شد.

نیروهای اشغال‌گر خارجی و افراط‌گراهای مذهبی در یک صف قرار گرفتند و با خشونت تمام به جان ملت عراق افتادند؛ نه به زن رحم کردند و نه به مرد، تجاوزها و وحشی‌گری‌ها و خون‌ریزی‌ها چنان شدت گرفت که قابل توصیف نیست. سرانجام خودِ اشغال‌گران رفتند و عراقی سوخته و ویران با گروه‌های خونی و متخاصم بر جای گذاشتند و همان است که تا امروز ادامه دارد.

در مصر، بهار عربی با الگو گرفتن از تونس به شکوفه نشست. لبخند شادی بر لب‌های مرد و زن مصری نقش بست. با کناره‌گیری حسنی مبارک طاغوت چهل‌ساله به تاریخ پیوست. میلیون‌ها مصری در میدان تحریر سرود آزادی سر دادند. انتخاباتی بی‌نظیر با شرکت تمام احزاب انجام گرفت و رئیس‌جمهور منتخب و قانونی روی کار آمد و جهان اسلام از این اقدام احساس عزت و غرور نمود و احزاب خشونت‌طلب به عملیات سیاسی باور نمودند و مبارزه سیاسی و حقوقی و روند گفتمان و مذاکره، جایگزین خشونت‌طلبی و افراطی‌گری شد، اما بدخواهان بشریت و انحصارگرایان قدرت با حمایت از نظامیان و ژنرال‌های مزدور و خودفروخته علیه حکومت قانونی کودتا کردند و با خشونت تمام هزاران مصری را به گلوله بستند و آنان را زیر زنجیرهای تانک‌های‌شان له کردند، ولی در این میان قدرت‌های بزرگی که دیروز با دلایلی خودساخته- که بعدها بی‌اساس بودن آنها برملا شد- صدام را در عراق سرنگون کرده بودند و به بهانهٔ مبارزه با تروریسم نظام طالبان را سقوط کرده بودند، امروز با وقاحت تمام از کودتاچیان حمایت کردند و بر تمام قوانین بین‌المللی و حقوقی پشت‌پا زدند. اکنون رئیس‌جمهور قانونی و منتخب در زندان به‌سر می‌برد و کودتاچی از حمایت سازمان ملل و شورای امنیت و قدرت‌های غربی برخوردار است.

مردم سوریه نیز با الگو گرفتن از مصر و لیبی و تونس برای رهایی از نظام استبداد به تظاهرات مسالمت‌آمیز روی آوردند. شهرهای بزرگ یکی پس از دیگری به خیل مردم پیوست. شعارهای آزادی و ترانه‌های رهایی مردم را به وجد آورد. کودکان در مدرسه و دانشجویان در دانشگاه و مردم در خیابان‌ها برای آزادی و دموکراسی شعار دادند، اما دولتمردان سوریه و در رأس آنان رئیس‌جمهور این کشور به‌جای گوش فرادادن به مطالبات و خواسته‌های مردم، ملت خویش را به گلوله بستند و شعار "یا اسد، یا هیچ‌کس" ورد زبان نظامیان وابسته به رژیم سوریه گردید. صدها هزار سوری کشته شد. خانواده‌هایی با تمام افراد سر بریده شدند. محله‌های وسیعی با سلاح‌های شیمیای مورد حمله قرار گرفت. جنایت‌هایی به وقوع پیوست که نه صرب‌ها و نه یهودی‌ها انجام ندادند. سازمان ملل و شورای امنیت با وجود اینکه هیچ اقدامی انجام ندادند، اما کشتار دست‌جمعی را با استفاده از سلاح‌های شیمیایی در سوریه تأیید کردند.

تعداد زیادی از افسران عالی‌رتبه نظام و مقامات سیاسی به خیل مردم و مخالفین پیوستند. گروه‌های اسلامی و جهادی به حمایت از ملت سوریه شتافتند و جنگی تمام‌عیار به وقوع پیوست.

سازمان ملل و قدرت‌هایی که همواره به‌خاطر منافع خویش در اوضاع کشورهای اسلامی دخالت می‌کنند، در موضوع سوریه نیز به تماشا کردن و لذت بردن از کشتار مسلمانان اکتفا کردند، و اخیرا قدرت‌های شرق و غرب، امریکا و

روسیه چون عرصه را بر نظام بشار اسد تنگ دیدند، به بهانهٔ تکراری و بی‌محتوای «مبارزه به تروریسم و سرکوب گروه داعش » که خود انها دربروز داعش دست داشتن به کشتن غیرنظامیان و مردم بی‌دفاع روی آوردند.

آنچه درمواضع کشورهای قدرتمند و سازمان‌های جهانی وائتلاف‌های منطقه‌ای بیش از هر چیز برجسته می‌نماید، حفظ منافع و مصالح سردمداران و تشدید اختلافات و سرکوب عموم مردم مظلوم و ستمدیده است.

این درحالی‌ست که تماشاگران این جریانات و تحلیل‌گران غربی و شرقی با تبعیت از سیاست‌های قدرت‌های بزرگ و دخیل، همواره یک راه حل ارائه می‌دهند و آن هم ادامه سرکوب تروریسم و لشکرکشی علیه گروه‌های افراطی و یاغی در اقصی نقاط جهان است. معمولا به محض اینکه حرکتی خشن در یکی از کشورهای اروپایی علیه شهروندان بی‌گناه انجام می‌گیرد و باعث کشته شدن جمعی می‌گردد موضع‌گیری مشترکی که بلافاصله و بدون تأخیر همه را در سازمان ملل جمع می‌نماید و به اتفاق قاطع آراء به تصویب می‌رسد، تشدید حملات و ارسال نیروهای بیشتر زمینی، هوایی و دریایی و به خاک و خون کشیدن هزاران بی‌گناه است. در چنین مواردی است که تحلیل‌گران از بدنامی اسلام و اینکه ریشه‌های خشونت در اسلام و فرامین آن نهفته است سخن می‌گویند و آموزه‌های دینی و مراکز اسلامی را به چالش می‌کشند، از مظلومیت و بی‌گناهی شهروندان اروپایی دم می‌زنند واز تمام حکومت‌ها و ملت‌ها می‌خواهند تا در همدردی و محکومیت جنایت مورد نظرشان دریغ نکنند.

نژادپرستان در کشورهای اروپایی و گروه‌های افراطی غیرمسلمان با آتش زدن مساجد و کشتن پناهجویان و ایجاد مزاحمت برای زنان مسلمان و تحت فشار قرار دادن اقلیت‌های اسلامی، کینه‌های درونی و عقده‌های دیرینهٔ خویش را روی افراد بی‌گناه و آواره خالی می‌کنند.

رسانه‌های جهانی که بر افکار عمومی تسلط دارند با تلاش بی‌وقفه و استفاده از شگردهای خاص خودشان، افکار عمومی را برای پذیرش اقدامات وحشیانه و حملات نظامی که عمدتا بی‌گناهان و غیرنظامیان قربانی اصلی آن هستند، آماده می‌کنند.

تأثیر رسانه‌ها در فضاهای مجازی و حقیقی به قدری وسیع و گسترده است که نه‌تنها عموم مردم، بلکه اقشار متدین و اهل دین و دیانت را نیز متأثر کرده است، به‌طوری‌که از احساس همدردی، اخوت و مودت با مسلمانان مظلوم، و از اظهار انزجار از جنایاتی که علیه مسلمانان اتفاق می‌افتد خودداری می‌کنند، و چه بسا اثرپذیری‌شان از تبلیغات و تحلیلات رسانه‌ها به‌جایی می‌رسد که با کسانی‌که دست‌شان به خون هزاران مسلمان بی‌گناه آغشته است اظهار همدردی کرده و کوچک‌ترین اقدام تلافی‌جویانهٔ مسلمانان علیه قاتلان ملت‌های اسلامی را محکوم می‌کنند.

کوتاه‌سخن اینکه روند چندین سالهٔ بحران خاورمیانه و گسترش آن به نقاط مختلف جهان، به‌وضوح ثابت کرده است که تلاش سازمان‌های بین‌المللی و ائتلاف‌های جهانی و یارگیری ابرقدرت‌ها در منطقه و تهاجمات نظامی با شعار «مبارزه با تروریسم» به هیچ وجه نتوانسته اقدامی مثبت و مفید برای مردم و ملت‌های ستمدیده باشد، زیرا هیچ‌گونه اراده‌ای قوی و مصمم برای خشکاندن ریشه‌های افراط‌گرایی در جهان از سوی قدرت‌های جهانی وجود ندارد، بلکه تمام تلاش آن‌ها معطوف به مبارزه با «معلول» و بی‌توجهی به «علت» است، به‌عبارت دیگر سیاست جهانی امروز مصداق این ضرب‌المثل است که «دزد را رها کردند و پرونده را بازداشت».

# د مرحوم ملا محمد حسن رحماني صاحب ژوند ته کتنه

عبدالرؤف حکمت

مرگ حق دی او هر ژوندی ساری دمرگ څکونکی دی، همدا قرآني فیصله ده. خو د تأمل او ژور غور وړ خبره داده چې چا ته مرگ په څرنگه حالت کې راځي او له دنیا څخه له کوم عمل،کردار او دریځ سره رخصت کیږي.

بريالي او سعادتمند یوازې هغه دي چې له ایمان، نیک عمل ، صالح او مصلح دریځ سره له دنیا څخه رخصت واخلي چې دغسې مرگ بیا خپله د متوفی لپاره تلپاتې سعادت او د وارثینو او متعلقینو لپاره يي د ویاړ او بریا سبب دی.

نن موږ د هغه مرحوم متوفی په ژوند او کارنامو غږیږو چې د ایمان او نیک عمل سره سره یې د علم، جهاد، هجرت او دیني خدمتونو څخه مالامال ژوند راتیر کړی او وروسته په همدې سفر کې ورته مرگ حاضر شوی او د عقبی په خوا رخصت شوی دی. دا مرحوم ملا محمد حسن رحماني صاحب دی چې څه موده وړاندې یې خپل روح حقیقي بادار ته وسپاره.

## د ژوند ابتدايي مراحل

ملا محمد حسن رحماني د مرحوم ملا الله داد اخند زوی څو لسیزې وړاندې د روزگان ولایت د چارچینو ولسوالۍ د ارغور په کلي کې په یوه متدینه کورنۍ کې دنیا ته راغی. له ډیر کوچنیوالي یې په دیني زدکړو پیل وکړ، لومړۍ زده کړې یې په خپله سیمه کې ترسره کړې او وروسته یې د کندهار او د پاکستان د بلوچستان په مختلفو مدارسو کې د وخت له تکړه استادانو لکه شیخ مولوي دستگیر صاحب، د پشین مولوي عبدالواحد ، سعدالدین اخندزاده صاحب،مولوي سید کریم اغا، په کوټه کې مولوي محمد صدیق صاحب او مولوي محمد ادریس صاحب او د چمن شیخ مولوي عبدالرازق صاحب او دغسې نور تکړه استادانو څخه یي دیني علوم حاصل کړل تردې چې وروسته یې د کراچۍ په جامعه رشیدیه کې داخله واخیسته او د دیني زده کړو تکمیل ته یي ملا وتړله .

مرحوم رحمانی صاحب له دیني زدکړو سره ځانگړې مینه درلوده او له علماء کرامو او مدرسینو سره یي همیشنی تعلق درلود له نوموړي څخه چې دیني زده کړې د روس ضد جهاد له امله نیمگړې پاته شوې وې، له امریکایي یرغل وروسته یي د مخفي ژوند په حالت کې یو ځل بیا دیني زدکړې پیل کړې او له یوه ځانگړي استاد شیخ مولوي ارشاد الحق صاحب څخه یې د دوره الحدیث تر پای ته رسولو پورې دیني علوم ولوستل.

## د روسانو په ضد جهاد

هغه مهال چې رحماني صاحب په کراچۍ کې په دیني زده کړو مصروف و په افغانستان کې د روسانو په خلاف جهاد اوج ته رسیدلی و، نوموړي د جهادي

فریضې د اداء کولو په اراده خپل کتابونه کت کړل او کندهار ولایت ته د جهاد لپاره ستون شو. نوموړی په پیل کې د کندهار د مشهور غازي شهید طالب جان په جبهه کې و چې مرکزیت یې د ارغنداب مربوط د چارباغ په سیمه کې و رحماني صاحب په دې سیمه کې د یادې جبهې د قرارګاه یا اطاق مسؤل هم و.

د طالب جان له شهادت وروسته مرحوم رحماني صاحب د کندهار د وتلي او منلي مجاهد شهید لالا ملنګ په جبهه کې جهاد پیل کړ چې بیا تر پایه په همدې جبهه کې د یو مخکښ مجاهد په حیث پاته شو.

د شهید لالا ملنګ تر مشرۍ لاندې مجاهدینو د ارغنداب، پنجوایي او کندهار ښار په مربوطاتو کې لکه پنجاو، پشتون باغ،نظرجان باغ، محله جات د شاه آغا دوراهي او دغه راز له کندهاره د هرات پر خوا د غځیدلي سرک په اوږدو کې په دښمن بریدونه کول چې په دې سیمه کې یې له شورویانو سره د تاریخي معرکو او سوبو کارنامې اوس هم د اولس په سینو کې خوندي او مشهورې دي. رحماني صاحب د شوري ضد جهاد په مهال د کندهار د چاونۍ په سیمه کې د تورانو په نوم پوسته باندې د عملیاتو په وخت خپله پښه له لاسه ورکړه چې بیا یې د ژوند تر پایه په نیمګړي بدن د دین خدمت کاوو.

## په اسلامي امارت کې خدمتونه

کله چې په افغانستان کې د تنظیمي هرج و مرج تور دوران اوج ته ورسید او د مرحوم امیرالمؤمنین ملا محمد مجاهد په مشرۍ د طالبانو سپین خوځښت د فساد مخنیوي مبارزه پیل کړه،رحماني صاحب له هغو کسانو څخه و چې له پیله ددې تحریک ملګری او مخکښ غړی و. د شهید لالا ملنګ جبهه چې رحماني



صاحب یې یو مهم غړی و له ټولو مربوطه ملګرو ، امکاناتو او وسلو سره په اسلامي تحریک کې مدغم او په دې ډول یې د اسلامي امارت د مراندو په ټینګولو کې ستر رول اداء کړ .

د کندهار له نیولو وروسته رحمانی صاحب چې داسلامي تحریک د لومړنی شورا غړیتوب یې هم درلود د کندهار ولایت د مستوفیت رئیس وټاکل شو. یو کال وروسته نوموړی د امارت د مشرتابه لخوا د کندهار ولایت والي او د جنوب غرب زون تنظیمه رئیس وټاکل شو چې بیا د امریکایي یرغل تر مهاله یې همدې وظیفې ته ادامه ورکړ.

له امریکایي یرغل وروسته نوموړی له خپلې سیمې په هجرت اړ او مخفي ژوند یې پیل کړ چې په عین حال کې یې د اسلامي امارت په اقتصادي کمیسیون کې خدمت ته هم اوږه ورکړه، چې په دې ډول یې په تیرو څوارلسو کلونو کې د مجاهدینو د اکمال ، د زخمیانو د معالجې او یتیمانو د تکافل په برخه کې په مستقیم یا غیرمستقیم شکل ګڼ د قدر وړ خدمتونه ترسره کړل چې له الله تعالی څخه یې ورته په مقابل کې کامل کامل اجرونه غواړو.

مرحوم رحماني صاحب د ژوند تر پایه د اسلامي امارت صف ته د یوه رښتیني خدمتګار په حیث وفادار پاته شو نوموړی لکه څرنګه چې له مرحوم

امیرالمؤمنین ملامحمد عمر مجاهد سره یي د اسلامي امارت په چارو کې همکارۍ ته ځان وقف کړی او مخلصانه خدمتونه يي کول د هغه مرحوم له نائب او ځايناستي امیرالمؤمنین ملا اختر محمد منصور صاحب سره يي هم بیعت وکړ او د هرډول خدمت او وفادارۍ ډاډ يي ورکړ.

جناب رحماني صاحب چې د ینې د سرطان مریضي يي درلوده د ۲۰۱٦ میلادي کال د فبرورۍ په ۸ نیته یي د ٥٥ کلونو په عمر فاني نړۍ ته الوداع وویل او د عقبی په خوا يي رحلت وکړ. انا للّه و انا الیه راجعون.

## د رحماني صاحب د شخصیت په اړه

د مرحوم رحماني صاحب د ډیر وخت ملګری مولوي عبدالرحمن منیر صاحب د نوموړي د شخصیت په اړه وايي:

رحماني صاحب د تقوی نمونه او د تواضع او کمیني سمبول و،عاجز ، فقیرالحاله او مشفق انسان و، د کونډو، یتیمانو او عاجزانو تکافل یي کاوو،حتی خپل د کور لپاره اختصاص شوی مبلغ يي د مریض یا زخمي مجاهد، د شهیدانو له ورثه او یتیم سره شریکاوو او د خپل مسؤلیت په دوران کې یي د نهايي وسعې په اندازه له تقوی څخه کار اخیست.

د رحماني صاحب د ډیر وخت ملګری او د اسلامي امارت لوړرتبه غړی سید عبدالله اغا د نوموړي په اړه وايي:

رحماني صاحب داسې شخص و چې د فقر او مسکنت له ژوند سره يي له زړه مینه درلوده، ما کله هم په نوو جامو او ښه او آراسته لباس کې نه دی لیدلی، همیشه یي عادي ژوند او په معمولي اسبابو ګوزاره کوله،د امارت لخوا ورته موټر ورکړل شو خو ده



قبول نکړ،د زړه سواندي يي دا حالت و چې که به يي محتاج او یا مریض ولید نو خپل د فقر د حالت ګوله يي ورسره نیموله او د وس مطابق همکاري یي ورسره کوله.

تکره لیکوال ښاغلي موسی فرهاد د رحماني صاحب د وفات په مناسبت په لیکلي مقاله کې لیکلي:

رحماني صاحب ډېر فقیرانه ژوند درلود ، له هر قسم خیانت او فساد څخه پاک انسان ؤ ، د افغانستان د ۳۷ کلن انقلاب په ټول دوران کې یعني د جهاد په درې واړه مرحلو کې پر نوموړي هیڅ داسی داغ نشته چې د ده او د ده د کورنۍ لپاره د بدنامی لامل شي ، بلکې خپل ټول ژوند یي د الله په لاره کې د یو ریښتیني انسان په ډول تیر کړی.

د اسلامي امارت د رهبري شورى له لورې د رحماني صاحب د وفات په اړه رسمي اعلامیه او د تعزیت پیغام خپور شو چې د نوموړي د خدمتونو قدرداني په کې شوې وه او د الله تعالی له دربار څخه ورته د جنت الفردوس غوښتنه شوې وه .

الله تعالی دې په مرحوم رحماني صاحب ورحمیږي او د نوموړي خدمات دې ورته قبول وګرځوي

آمین یا رب العلمین

# د سرپل له مسؤل

## مولوي عطاء الله سره مرکه

### پیژندنه

سرپـل ولایـت چې دافغانستان پـه شمالي برخـه کې پـروت دی ، شمال تـه یې جوزجان ، ختیځ ته یې بلخ او سمنګان ، جنوب ته یې بامیان او غور او لویدیځ ته یې فاریاب ولایت موقعیت لري .

سرپل ولایت چې لـه پنځـه لکـه تنـه زیـات خلک پـه کې اوسیږي ۱۵٬۹۹۹ مربع کیلومتره مسـاحت لـري ، چـې دولسـوالیو یـا حکـومتي واحـدونو شمیر یې ۱۰ تـه رسیږي او مرکـز یې دسرپل ښار نومیږي.

سرپـل ولایـت پخـوا دجوزجـان ولایـت لـه مربوطـاتو څخـه وو خـو پـه ۱۹۸۸ کـال کې دهیـواد داداري تقسیماتو پـه لړ کې دځانګړي ولایت امتیاز ورکړل شو، دا ولایت اوسیدونکي ازبک ، تاجک ، پښتانه ، هـزاره ، عـرب ، ګـوجر او ترکمن افغانان دي ، د مجلې ددې ګڼې لپاره مـو په یاد ولایت کې د جهادي فعالیتونو د څرنګوالي په اړه د ولایت له مسؤل مولـوي عطاء الله عمـري سره مرکه کړې چې ستاسو پام ورته راګرځوو.

### پوښتنه

مولوي صاحب تاسو ته هرکلی وایو که دا راته ووایاست چې سږکال په سرپل کې د عزم عملیاتو لړۍ څنګه روانـه وه او جهادي وضعیت څنګه و؟

### ځواب

الحمد لله رب العلمـین و الصـلوة و السـلام علـی سـید الانبیاء والمرسلین وعلی آله و صحبه اجمعین و بعد.

ستاسو د پوښتنې په ځواب کې به ووایم چې لله الحمـد په سرپل ولایت کې د درستو شمالي ولایـاتو غونـدې د عـزم عملیاتو لړۍ په ډیره بریالۍ توګه مخته لاړه او مجاهـدینو د الله تعالی په مرسته او کرم لوی لوی فتوحات ترلاسه کړل.

کـه پـه لنـډه توګـه ووایـو د سرپـل ولایـت پـه سـنګ چارک،سوزمه قلعه، کوهستانات، صیاد ، شیرم او د ولایت د مرکز په مربوطاتو کې مجاهـدینو اکثریـت سیمې تـر خپـل کنترول لاندې راوستې او ددښمن د واکمنۍ ټغر یې ورټـول کړ. دا سیمې پخوا تر ډیـره ددښـمن پـه واک کـې وې هلتـه لوی لوی حکومتي قومندانان او اربکیـان او د ملیشو خلـک مسلط و،چې مجاهدینو څه د نظامي عملیاتو او څه د دعوت له لارې له سیمې ایسته کړل او سیمه د اسلامي امـارت تـر واکمني لاندې راغله.

## پوښتنه

محترم مولوي صاحب که د عزم عملیاتو په لړ کې د سرپل ولایت جهادي بهیر ته کتنه وکړئ اولږ تفصیل ورکړئ چې هلته کوم حوادث پیښ شول او مجاهدینو څه وکړل؟

## ځواب

سمه ده ستاسو په اجازه به زه د تیر کال په جهادي جریاناتو مفصل وغږیږم. هغه دا چې تیر کال پسرلی، که موږ د سرپل حالات را په یادوو نو وضعیت کاملا بدل و چې لله الحمد د عزم عملیاتو په لړ کې حالاتو تر ډیره حده مثبت تغیر وکړ. د بیلګې په توګه د سنګ چارک په ولسوالي کې په ټوله سیمه محلي اربکیان مسلط و یوازې د دره ازمچي په سیمه کې مجاهدین وو. د الله تعالی په نصرت مجاهدین وتوانیدل چې د څو اونیو مسلسلو عملیاتو په نتیجه کې د اوقاف او لنګرشاه عبدالله سیمې چې پراخې درې دي فتح کړي.

وروسته مجاهدینو د سوزمه قلعه ولسوالۍ د کته قلعه سیمه چې ۷۵ کلي لري او یو لوی بازار په کې واقع دی، ددې سیمې اربکیان او قومندانان یي په دعوت او خبرو دې ته اړ کړل چې ځانونه تسلیم او دغه سیمه مکمله مجاهدینو ته وسپاري د سوزمه قلعه ولسوالۍ له مرکز پرته ټولې سیمې سږ کال ددښمن له شتون څخه تصفیه شوې دي چې دا د مجاهدینو لپاره یوه ستره بریا وه.

له دې وروسته مجاهدینو د کوهستاناتو د مهمې ولسوالۍ په خوا پرمختګ ته دوام ورکړ، د قلعه شهر سیمه چې ۱۰ زره کورونه لري او د څلورو ولایاتو فاریاب،غور، بامیان او سرپل د اتصال نقطه ده مجاهدینو فتحه او له دښمن څخه تصفیه کړه، ورپسې د چلچه علاقه فتح او بیا له درې ورځې جنګ وروسته د کوهستاناتو ولسوالي مرکز د ۸ په شمول مکمل فتحه شو چې مجاهدینو ۱۶ رینجر پوځي




موټر دوه دهشکې او نور ګڼ خفیفه مختلف النوع وسلې غنیمت کړې.

د کوهستاناتو فتحې دښمن دومره وارخطا کړ چې په کابل کې ارګ او پارلمان لا د وارخطایي اظهار وکړ او د اشرف غني مرستیال جنرال دوستم چې د ګوډاګي حکومت دوهم لوړرتبه شخص دی په عاجله توګه له یوې قوې سره کوهستاناتو ته راغی او ددې ولسوالۍ مرکز یي د لنډ وخت لپاره یو ځل بیا تر واک لاندې راووست.

مجاهدینو له لازمو ترتیباتو وروسته یو ځل بیا دکوهستاناتو په ولسوالۍ برید پیل کړ چې په ترڅ کې یي ددوستم ځای مشخص او د هاوان تر دقیقو ګوزارونو لاندې ونیول شو چې په پایله کې یي دوستم په ډیره وارخطایي د څرخکې په واسطه فرار وکړ او مجاهدینو یو ځل بیا کوهستاناتو ولسوالي فتح کړه چې دا ځل یي ۱۸ رینجر،۵ ټانګونه،۱۲ د هشکې۳۰ ثقیل ماشیندار او ګڼ شمیر نورې وسلې او مهمات مجاهدینو غنیمت کړل دغه راز یي ۲۵ تنه د اردو پوځیان هم اسیران کړل.

## پوښتنه

مولوي صاحب تاسو چې کومو عملیاتو ته اشاره وکړه واقعا د تیر کال په اوږدو کې ستر عملیات او فتوحات شوي دي که د اوسنیو نږدې ورځو جریانات هم راسره شریک کړې چې آیا د فتحو لړۍ روانه ده که څنګه؟

## ځواب

په نږدې وخت کې یعنې میاشت یونیمه مخکې مجاهدینو د صیاد په ولسوالۍ کې د پام وړ بریاوې درلودې هلته د اربکیانو تر ټولو مشهور او مضرـ قومندان خیرالله آقسو له خپلو اوو تنو نږدې کسانو سره په یوه تاکتیکي برید کې له منځه لاړ او پاتې اربکیان یې څه تسلیم او پاتې نورو د تیښتې لار ونیوله په دې علاقه کې د آقسو شرقي، آقسو غربي، آهو او خواجه آلمتو سیمې چې پراخې علاقې دي مجاهدینو نیولې او مجاهدین فی الحال له دریو خواوو د سرپل له مرکز سره وصل شوي دي.

که فی الجمله ووایم سرپل لس ولسوالۍ لري چې کوهستانات، کچن او شیرم ولسوالۍ یې مکملې فتحه او د مجاهدینو په لاس کې دي، له بلخاب پرته په نورو ټولو کې مجاهدین تشکیلات لري او ډیرې سیمې یې تر واک لاندې دي.

د سرپل ولایت اطرافي سیمې تقریبا ټولې اوس د مجاهدینوپه واک کې دي او له دښمن سره د ځینو ولسوالیو مراکز پاته دي،دتیر کال په اوږدو کې مجاهدینو له هرې نګاه نه پیاوړي او زیات شوي دي، موږ د تیرکال په پیل کې هم د مجاهدینو احصایه واخیسته او اوس هم ، موږ ته معلومه شوه چې لله الحمد په تیر یوه کال کې دمجاهدینو شمیر څلور برابره زیات شوی دی، دغه راز د امکاناتو له درکه مجاهدینو پیاوړي شوي دي، لسګونه ټانګونه، رینجر او ثقیلې وسلې په لاس کې لري چې پخوا یې د ا هیڅ هم نه درلودل.

## پوښتنه

د شمال په اکثرو ولایاتو کې یو عمده مشکل د پخوانیو ټوپکي قومندانانو دی، چې خپلې ډلې او وسلوال لري، کله ناکله له دښمن سره په رسمي چوکاټ کې همکاري کوي او که هغه نه وي هم اولس او مجاهدینو ته یو عمده سرخوږی او خنډ بلل کیږي، تاسو د دغو ټوپکي قومندانانو او ملیشو د تصفیې په برخه کې څه کړي دي؟

## ځواب

لکه تاسو چې وویل واقعا همداسې دې ، د غور، فاریاب او نورو سیمو غونډې په سرپل کې هم پخواني خودسره ټوپکیان پاته دي، خو سږکال لله الحمد ددوی واک او ځواک تر ډیره له منځه تللی، مجاهدینو له بیلابیلو لارو استفاده کړې چې دغه خودسره وسلوال له صحنې وباسي، دغه ټوپکیان چې اوس له دښمن سره تړلي او د اربکیانو یا محلي پولیسو په نوم دندې لري مجاهدین ورته لومړی دعوت ورکوي او که په دعوت ونه شي بیا یې له منځه وړي.

سږکال په سرپل کې د زر تنو په شاوخوا کې کسان چې اکثره یې همدا محلي ټوپکیان دي تسلیم شوي او له دښمنۍ یې لاس اخیستی دی دغه راز د سرپل په سطحه پنځه ددښمن لوی لوی قومندانان لکه بحرالله، توپان، محمد نور، وکیل خان او خیرالله آقسو مجاهدینوپه چریکي او تاکتیکي بریدونو کې له منځه وړي دي چې دا دښمن په سر خورا دروند ګوزار و .

## پوښتنه

په سرپل ولایت کې د اسلامي امارت د نورو اداراتو د فعالیتونو په اړه که معلومات راکړئ؟

## ځواب

په سرپل کې د نظامي کارونو تر څنګ د دعوت، تعلیم او تربیه، قضاء او په نورو بیلابیلو برخو کې فعالیتونه دوام لري، په ولایت کې هم دیني مدارس فعال دي او هم د عصري زدکړو ښوونځي منظم فعالیت لري، یوه د خوښۍ خبره دا ده چې ددیني زدکړو بهیر ښه پیشرفت کړی او لویې لویې مدرسې وداني شوي دي په دې سربیره د قضاء او محاکمو برخه هم ښه فعالیت لري او د خلکو ستونزې د شریعت په رڼا کې حل کوي.

## پوښتنه

آیا په سرپل ولایت کې د اسلامي امارت له جهادي تشکیلاتو پرته کومه بله ډله یا فرقه شته ؟

## ځواب

روان کال په لومړیو کې چې د مرحوم امیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله د وفات خبر اعلان شو، او محترم ملا اختر محمد منصور حفظه الله د نوي زعیم په حیث منتخب شو د سرپل ولایت ټولو مسؤلینو او عامو مجاهدینو په یوه غږ له نوي امیر سره بیعت وکړ او د هر اړخیزې اتباع او وفادارۍ ډاډ یي ورکړ.

لله الحمد په سرپل ولایت کې هم د اکثره شمالي ولایت په شان نه خو دداعش اړوند څوک شته اونه هم داخلي باغیان چې مجاهدینو ته تشویش پیدا کړي، ددې ولایت مجاهدینو ټول په اتفاق سره د یوه امیر تر مشرۍ لاندې جهاد ته ادامه ورکوي او هر ډول تفرق او ځانځانۍ سره مقابله کوي.

## پوښتنه

محترم مولوي عطاء الله عمري صاحب ! که په پای کې څه پیغام لرئ هیله ده راسره شریک یي کړئ تر څو یي تر لوستونکو ورسوو.

## ځواب

ډیره مننه ، پیغام مې مجاهدینو او عامو مسلمینو ته دادی چې د حالاتو په حساسیت او ددښمن لخوا په متوجه گواښونو او دسائسو ځان پوه کړي.

بایدپه دې پوه شو چې موږ اوس په هغه حالت کې یو لکه څوک چې له اوږدو خواریو، کښت کرلو، پاللو ، مصارفو کولو او رایوځای کولو وروسته د حاصل اخیستلو په وخت کې وي، که په دې وخت په خپله سرمایه او هستۍ ښه فکر ونه کړي او ښه ساتنه یي ونه کړي نو خدای مکړه ټولې خوارۍ به یي په اوبو لاهو شي.

متحد اسلامي امارت زموږ د نږدې څلویښت کلونو د قربانیو، تکالیفو، مهاجرتونو او شهادتونو خلاصه او لب لباب دی، اوس د اولس د کونډو او یتیمانو سترگې هم همدې صف ته دي چې دغه ټولی به یي شرعي آرمانونو ترسره کوي، اسلامي نظام به جوړوي، شریعت به پلی کوی او د اولس په زخمونو به پټۍ ږدي.

مگر ځیني داخلي او خارجي لاسونه تر مختلفو شعارونو لاندې کوښښ کوي چې دا صف متفرق او متشتت کړي، مجاهدینو په ډلو وویشي ، د اسلامي امارت موجوده نظم له منځه یوسي او په دې ډول د کفارو د کلونو ارمان ترسره کړي.

موږ باید ویښ او هوښیار واوسو، او په دې فکر وکړو چې په دې صف کې کومه نیمگړتیا ده چې موږ یي باید په ځای بل صف او خوځښت رامنځته کړو، اول خو په دې صف کې کوم ښکاره نقص نشته او که بیا خدای مکړه وي راځئ د هغه نقص د ختمولو او رفع کولو کوښښ وکړو نه دا چې د صف د متلاشی کولو او ختمولو لپاره کار وکړو.

که یو مثال ورکړو، که چیرې ستاسو په کور کې یوه کړکۍ یا یوه دروازه لږ کږه او ناسمه وي، نو آیا تاسو به هغه کوږ ځای سموئ او که به ټول کور له بیخې ورانوئ معلومه خبره ده چې یوازې به هغه جزئي نقص رفع کوئ.

نو باید ویښ او بادرکه واوسو ، د چا په غلطو تبلیغاتو ونه غولیږو او د اسلامی امارت تر مدبرانه قیادت لاندې د دصفت د وحدت ، ټینگښت او پیاوړتیا لپاره کار وکړو او دشرعی نظام د بشپړ نفاذ په خوا مبارزې ته دوام ورکړو.

ليک (م . الفت)

# دحيا او تواضع ځلانده ستوری

## او قهرمان شهيد مولوي محمد ولي حقاني (رحمه الله)

مولوي محمد ولي حقاني (رحمه الله) دالله دلارې هغه پاک ، سپيڅلي مجاهد اوداسلامي امارت باتور قومندان وو چې نېږدې دوه لسيزې يې دالله درضا او اعلای کلمة الله په خاطر يوه شپه هم په ارام تيره نکړه ، شپه ورځ يې ددين ددفاع اودهيواد دلوړو ارزښتونو په نيت کړاوونه زغمل اوکړ ليچونه يې کز اوپل کول ، سوچ اوفکر يې ټول په دې کې نغښتی اومصروف وو ، چې څنگه هغه ځای ته ځان ورسوي چې دجهاد او امارت ورته اړتيا اوضرورت دی

اتل مولوي صاحب ته دامهمه نه وه چې مشران ورته کوم مسؤليت اومنصب ورکوي اوياېې په څه ډول مکافاتو قدرداني کوي ، سرله دې چې الله تعالی په مولوي صاحب محمدولي حقاني کې لوړ استعداد اوهمه جانبه بصيرت موجود وو، هره دنده اومسؤليت به چې ورته وسپارل شوه کماحقه به يې ترسره کوله اوسرفرازه به ترينه راووت.

خو الله تعالی ته نوره همدا خوښه اومقدره وه چې داخلاقو ، ديانت اوزړورتيا دغه دنگ منار نور خپل لور ته وبولي او زمونږ له منځ يې پورته کړي.

### مولوي صاحب محمدولي څوک وو :

شهيد مولوي محمدولي ، دالحاج ملا محمد گل ځوی ، په قوم عمرخيل احمدز ی دلوگر ولايت دمرکز پل علم دسپيست دکلي اوسيدنکی، چې شاوخوا ۴۰ کاله وړاندې يې په ياده متدينه او علم افروزه کورنۍ کې دې جهان ته سترگې رڼې کړي

ړومبنی زدکړې يې په خپل کلي اوپاتې نورې يې دهجرت په ديار دپېښور په مختلفو ديني مدرسو کې ترلاسه کړې، دحديثو لويه دوره يې په ۲۰۰۱ کال کې داکوړه خټک په حقانيه دارالعلوم کې ترسره اودفضيلت سند او دستار يې له هماغه مدرسي په برخه شو .

مولوي صاحب به چې کله دژمي موسم راغی اوفرصت به په لاس ورغی نو سمدلاسه به يې په کومې مدرسې کې په تدريس پيل وکړاوطالبانو ته به يې دفنونو مغلق کتابونه لوستل ، چې ويل کيږي ، مولوي صاحب له دستار فضيلت ورسته ۸ کاله شاندار تدريس وکړ ، چې دلوگر دالتمورپه دارالعلوم شامحمديه مدرسه ، دسپيست په تعليم القران ، داکوړې په جامعه فاروقيه کې څوکاله په منظم ډول ديوه زبده استاد په صفت پاته او طالبانو ته درسونه وويل.

مولوي صاحب علاوه په دې چې دتصوف اوتذکيې رښايي هم په زړه کې خاص ځای درلود او له مرحوم پيرسباق صاحب رحمه الله څخه يې لاس نيوی کړی وو ، داکوړه خټک په مبارکو استادانو اومشايخو سربيره يې دديني علومونو اوفنونو مشهور استادان په لاندې ډول يادولی شو، شيخ الحديث استاد الاساتذه عبدالقدوس جان صاحب، شيخ حاجی محمدصادق صاحب ، شيخ حمدالله جان داگی صاحب ، شيخ محمد اسماعيل رحمانی

صاحب ، شیخ صاحب محمدامین صاحب، شیخ سید قریش بابا صاحب، شیخ مولوی نور محمد ثاقب صاحب ، شیخ مولوي فضل الرحمان پکتیاوال صاحب ، شیخ مولوي عبدالغنی صاحب ، شیخ شامنصور باباجی صاحب اونور.......

**اخلاق اوتقوا** : الله تعالی مولوي صاحب محمد ولي حقاني ته داسې حسنه اخلاق ورکړي وو چې له چاسره به یې یوځل ولیدل اومجلس به یې ورسره وکړ، ارومرو به هغه کس ترینه متاثر کیده او ښه احساس به یې ترینه اخیست، ځکه مولوي صاحب ، متواضع شخصیت وو، کبر اوبې ځایه غرور یې نه درلود ، دنرم مزاج څښتن وو ، مقابل کس سره به یې که به څه هم ترده کشر وو ، خو له قدرداني اواحترام ډک چلند اوبرخورد کاوه

دغه ډول مولوي صاحب ته چې الله تعالی بل مهم صفت او خصلت ورپه نصیب کړی وو ، هغه حیا وه، چې ترڅو به چا پوښتنه نه وه ورنه کړي مولوي صاحب به کوشش داکاوه چې خاموش پاتي شي، سپک الفاظ یې چاته په ژبه نه راتلل ، دځان ستاینه یې نکوله، داستادانو اومشرانو به یې انتهایي درناوی او احترام کاوه اوتل به یې ژبه دالله په ذکر لمده وه.

## دندې اومسؤلیتونه :

مولوي صاحب دجهاد اومبارزي کلونه ترډیره بریده داسلامي امارت دنومیالي جهادي مشر اواتل شهید مولوي میراحمدگل هاشمي سره یوځای تیر کړل او له لوگر نیویولي ترپکتیا، خوست، غزني، شمالي او ننگرهار پورې یې گډه اواوړده ملگرتیا درلوده ، تردې چې کله میرصاحب دلوگر والي وټاکل شو، مولوي صاحب محمد ولي یې دمعاون په صفت دنده اجراکوله .

دغه راز مولوی صاحب دلوگر ولایت دمرکز دولسوال او هم دلوگر دازري ولسوالی دمسؤل په توگه په ډیره ایمانتداري اوصداقت سره دندې سرته رسولی ، چې په نورو بې شمیره لاسته راوړنو سربیره یې دازري په ولسوالی کې دخارجیانو دیوې چورلکي کوزول او ترډیره وخته دعملیي خوندي ساتل دده دتدبیر یوه ژونده بیلگه یادیږي.

په همدې ډول کله چې مولوي صاحب دلوگر ولایت دمرکز مسؤل وو ، داجیرې اداري له لوري ورته داتیازرو ډالرو وړاندیز شوی وو په دې شرط چې هغه به له عملي جهاد څخه لاس اخلي ، خو الله تعالی دپاک ضمیره مولوي صاحب په عزم او جهادي اراده کې نور برکت او جذبه هم واچوله نه داچې دغلیم وړاندیز یې مسترد کړ، بلکې نور یې هم دجهاد میدان تود اوگرم وساته اوپه دښمن یې ځمکه سره تبی جوړه کړه.

## شهادت:

په دې ورستیو کې چې دهیواد په ختیځ ننگرهار په ځینو سیموکې داختطاف گرو او شوکمارو په خلاف اسلامي امارت تصفیوي عملیات پیل کړل اوله یوشمیر ولایتونو څخه ورته مجاهدین وغوښتل شول، مولوي صاحب محمد ولي حقاني هم دمشرانو بلني ته لبیک ووایه اوله گڼو میرنیو مجاهدینوسره یې ننگرهار ته ور ودانگل چې په ډیرکم وخت کې یې دننگرهار مهمې سیمې له اختطاف چیانو څخه تصفیه او پاکي کړلي

خو غلیم چې دمجاهدینو حیرانونکي بریا ولیدله اوپه خاص ډول یې دمولوي صاحب موثریت هلته مشاهده کړه، نو دهغو جدي تعقیب او پلټنه یې شروع کړه، نو بالاخره اجیر دښمن مولوي صاحب سره له ملگرو دبټي کوټ دمریږي په ساحه کې محاصره کړ، چې له درني جگړې ورسته چې له مولوي صاحب دوی سره دمهماتو زیرمي تمامي شوي بزدله دښمن مولوي صاحب محمدولي حقاني له لسو تنو ملگر سره دروان لمریزکال د۲۲-۱۱-۱۳۹٤ نیټه په شهادت ورساوه.



## د افغانستان اسلامي امارت
## د تعلیم او تربیې او عالي تحصیلاتو کمیسیون

# تعلیم او تربیه د ژوندانه اړتیا!

بسم الله الرحمن الرحیم

په لومړۍ برخه کې مو ددې لړۍ د مهم رکن استاذ په اړه اسلامي ارشاداتو ته اشاره وکړه د استاذ مقام ، داستاذ مواصفات ، شاګرد او ټولنې ته داستاذ ښونیز مسئولیتونه او داسې نور اړوند مسائل مو ستاسو په وړاندې کېښودل اولومړی مو د استاذ ایماني او نفسي صفتونه په ښه تفصیل سره وڅیړل چې هغه : صداقت او رښتنولي ، عدل او برابري ، صبر او زغم ، امانت ، له شبهاتو او مروت ضد شیانو څخه ځان ساتل ، حیاء خپلول ، د جماعت په لمانځه عادت نیول ، ښکلی او صفا منظر او مظهر درلود ل ، حلم او عفو ، تواضع او نرمي او په تیره بیا شفقت او مهرباني کول وو.

اوس په دې برخه کې د استاذځینې شرعي مواصفات ، عقلي او تعلیمي مهارتونه بیانوو چې د دې اصولو او مهارتونو رعایت کولو ته په تعلیمي لړۍ کې اصول التدریس ویل کېږي .

**اصول التدریس:**

ځینې خلک فکر کوي چې داستاذ وظیفه او دنده دا ده چې خپل معلومات شاګردانو ته انتقال کړي چې داستاذ دغه ډول تعریف ډېر نیمګړی او د استاذپه حق کې یو ډول تقصیر دی او د استاذ ډېرو غوره مواصفاتو او ځانګړتیاوو ته نه شاملیږي ځکه استاذ مقتدا، ناظم ، لارښود ، مهربانه ورور ، مشفق پلار ، دبې وزلو سرپرست او د ټولنې د بنسټي امورونتظیموونکی او داسې د نورو غوره ارزښتونو خاوند دی نو په دې توګه ویلای شو چې استاذ ته په ټولنه کې ډېر درانه مسئولیتونه متوجه دي خو دلته زمونږ هدف دا نه دی چې د استاذ ټول اړخونه وڅېړو بلکه غواړو د استاذ هغه مکلفیتونه چې د تعلیمي او ښوونیزې لړۍ په بریالیتوب کې یې لري اشاره وکړو د دې لپاره چې تعلیمي سلسله ښه پر مخ ولاړه شي په دې کې د استاذ نقش او رول بنسټیز حیثیت لري چې یو بریالی استاذ بریالي شاګردان روزلای شي .

په دې برخه کې غواړو پر ځینو شرعي مواصفاتو ، عقلي او تعلیمي مهارتونو رڼا واچوو چې د تدریس اصول ورته ویلی شو دغه اصول او مهارتونه هغه میتودونه او لارې چارې دي چې د تعلیمي لړۍ په تاریخ کې د وخت او شرائطو په غوښتنه د ماهرو او مجربو استاذانو د تجربو او روزنو څخه لاس ته راغلي او اوس د تعلیم په لړ کې د اصولو په توګه ورڅخه استفاده کیږي د تعلیم او ښوونې د فن ماهرین او پوهان ددې اصولو (اصول التدریس ) په هکله وایي :

- اصول التدریس یا د ښوونې اصول هغه ډول اصول او قواعد دي چې په تعلیمي سلسله کې یې تطبیق ضروري دی .
- دتعلیم او ښوونې قوه پخپله نه راځي داپه هغو اصولو کې ده چې یو استاذ یې د تعلیم په باب رعایت کوي .
- تعلیمي اصول د شاګردانو سره په تربیوي عملیې او د دې عملیې په مختلفو اړخونو باندې په پوهیدلو کې مرسته کوي او ددې عملیې مؤثریت زیاتوي دمثال په توګه : د نفسي اصولو رعایت استاذ ته ددې توان ورکوي چې د زدکونکي نفسي اصول او اړخونه وفهموي او د شاګرد سلوك ورته معلوم شي چې بیا کولای شي له هغو سره سم مثبت سلوك ورسره وکړي او که چېرې دا ورته معلوم نه وي نو نشي کولای دهغه د علمي او اخلاقي استعدادونو سره سم چلند ترسره کړي بلکې کیدای شي حساسیت را وپاروي، منفي اثر وکړي او ښونیز هدف تر لاسه نشي .

- دغه اصول به دهر ځای او شرائطو سره برابر وي نه دا چې له بهر څخه به تپل شوي وي دا ځکه چې هر ځای او هره ټولنه خپلې ځانګړتیاوې لري چې دهغو په رعایت کولو کې ددې اصولو د تاثیر اندازه لوړیږي .
- دغـه اصول بـه داسلامي معیـارونو سره سم وي ځکـه چـې اسلام دغـه ټول اصول او مقررات په خپلـه لمن کې رانغاړي او دا د بشریت دین دی چـې د بشریـت ټـولې فطـري غوښتنې پکې رعایت شوي دي

**ځینې شرعي مواصفات او عقلي مهارتونه:**

**1-د نیـت پـاکوالی او اخـلاص درلودل :**

داسلامي شریعـت لـه نظره نیت هغـه شیـز دی چـې د اعمالـو د ثـواب اندازه او دقبلیدو کیفیت ورپـورې تړلـی دی یعني په کومه انـدازه چې پـه نیکو اعمالو کې نیت صفا وي نو ثواب بـه یې هومره زیـات وي او دقبولیت امکـان بـه یې هم ډیر وي رسول الله صـلي الله علیـه وسلم فرمـایي (انمـا الاعمـا ل بالنیـات ) یعنـي بیشـکه د عملونـو ثـواب پـه نیت پورې تړلـی دی نـو د تعلیم ، ښوونې او روزنې عمل چې لـه ډیرو غـوره اعمالـو څخه دی او د ډیر لوړ مکافات وړ دی دا هله کیدای شي چې پکې نیت صفا وي او دا غوره عمل د دې لپاره دی چې :

خپـل علمـي شرعـي مسئولیت ادا کـړي رسـول الله صـلي الله علیـه وسـلم فرمایي (من کـتم علـماً عنـده الجمـه الله بلجام من النـار) یعنـي څـوك چـې ده تـه ورکړل شوی علم پټ کړي الله تعـالي بـه



یـې د قیامـت پـه ورځ پـه خولـه کـې د اور ملـوني واچـوي .یـو بـل مبـارك حـدیث کـې فرمـایي (ان اشد النـاس عـذاباً یـوم القیامـة عالم لم ینفعه الله بعلمه) یعني د قیامت پـه ورځ به ترټولو خلکو زیات عذاب د هغه عالم په برخه وي چې الله تعالي یې له خپلـه علمـه څخه بهرمند کړی نه وي او داسې نور ډیر سخت وعیدونه په دې اړه راغلي دي .

دا عمل به د دې لپاره وي چې علم یو شرعي او ټولنیز امانـت دی تـر څـو یـې لـه خپلـو اوړو څخه واړوي اونورو ته یې ورسوي رسول الله صلي الله علیه وسلم فرمـایي (خیرکم مـن تعلـم القـران وعلمه ) یعني ستاسو غوره هغه څوك دی چې دی خپله قرآن زده کړي او نورو ته یې ور وښیي . بل ځای فرمایي ( افضل الناس عالم اذا احتیج الیه نفع وان استغني عنه اغنـی نفسـه ) یعنـي تـر ټولـو خلکو بهتر ین هغه عالم دی که ورته اړتیا پیښه شي نو ګټه رسوي او که چا ورتـه اړتیـا نـه لرلـه نـو هغه هم له دوی بې پروا وي .

ددې لپاره به وي چې راتلونکې ټولنه د علم په رڼا کې ژوند وکړي او حق وپیـژني او د اسلام په سپیڅلي عقیده سمبال یوه داسې ټولنه چې انساني ارزښتونه او اخلاقي معیارونـه پکـې رعایـت شوي وي او له هر ډول انحرافاتو څخه پاکه وي را منځ ته شي .

لنډه داچې په دې غوره عمل کې به فاسد اغراض او دنیوي ناوړه مقاصد نه رعایت کوي تـر څو یې عمل ضائع نه شي الله تعالی فرمایي : (فمن کان یرجو لقاء ربه فلیعمل عملاً صالحاً ولایشرك بعبادة ربه أحداً ) الکهف ۱۱۰ - یعني پس هر څوك چې امید لري د (اخروي) ملاقات د رب خپـل نو ښایي چې عمل وکړي صالح او نه دی شریکوي په عبادت د رب خپل کی هیڅوك .

رسول الله صلي الله علیه وسلم فرمایي : لاتتعلموا العلم لتباهوا به العلماء ولتماروا به السفهاء ولتصرفوا به وجوه الناس الیکم فمن فعل ذلك فهو في النار ) یعنـي تاسـو علـم ددې لپـاره مـه زده کوئ چې په علماؤ ځان لوړ وګنئ اویا له ناپوهانو سره ورباندې ډغرې و وهـئ اویـا د خلکـو توجـه ځان ته را واړوئ او که چا د غسې وکړل هغه دوزخي دی .

**2- په الله جل جلاله باندې توکل کول :**

الله جل جلاله فرمایي : (ان الله یحب المتوکلین )ترجمه : بیشکه الله جل جلاله توکل کوونکي خوښوي حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه فرمایي : (لو ان اهل العلم صانوا علمهـم وبـذلوه لأهله لسادوابه أهل زمانهم ولکنهم بذلوه لأهل الدنیا لینالوا من دنیاهم فهـانوا علـی أهلهـا سـمعت نبیکم یقول من جعل الهم هما واحدا یعنی هم الآخرة کفاه الله ما أهـم مـن امـر دنیـاه ومـن شـغلته هموم احوال الدنیا لم یبال الله تعالی في ای أودیة النار أهلکه وأي اودیة النار عذبه . رواه ابن ماجة 257-الحاکم2-443ترجمه : حضرت عبدالله بن مسعود رضـی الله عنـه فرمـایي : کـه چېرې علماء خپل علم وساتي او د علم اهل ته یې ورسوي نـو د زمـانې د خلکـو واکـداران بـه شي خـودوی علم بدایانو ته رسوي څو له دنیا څخه یې ګټه ترلاسه کړي ځکه یې ځانونه د زمانې خلکوتـه ټیټ کـړي ما ستاسو له پیغمبر څخه واوریدل چې ویل یې : څوك چې ټول غمونه یوازې دآخرت غم وبـولي نـو

د دنیا د غم چارې به یې الله سمبال کړي او که څوک د دنیا په غمونو کې مشغول وي آخرت ته یې پام نه وي نو الله تعالی بیا وربانډې پروا نه کوي چې په هره کنده ددوزخ کې هلاک او عذاب شي .

مطلب دا چې عالم او استا ذ به خپل علم د دنیا لپاره نه کوي او په مناسبو ځایونو کې به یې ایږدي د الله تعالی رضا او خوښي به پکې مطلب وي نه د دنیا مال او متاع ، مرتبه او عزت او شاګردانو ته به هم د دغه توکل سپارښتنه کوي .

**۳-په ټولو اسلامي تعلیمي او ښوونیزو پالیسیو ځان خبرول :**

استاذ به دخپل تعلیم په سلسله کې هغه اصول مراعاتوي چې داسلامي عقیدې ، اخلاقو او آدابو سره برابر وي او له بلې خوا د شاګردانو په فهم او زدکړه کې مؤثریت ولري او دغه تعلیمي اصول به شاګردانو ته هم ورښيي تر څو هغوی بیا د خپل مکلفیت په وخت کې ترې استفاده وکړي .

**۴- د خپل مضمون په اړه وسیع اوپراخ معلومات لرل :**

استاذ به په تعلیمي ماده بانډې بشپړ برلاسی وي ترڅو په پور ه ډاډ او اطمینان سره د تعلیم عملیه پرمخ بوزي ، د معلوماتو د لاس ته راوړلو لپاره به په مجالسو کې شرکت کوي ، علمي مدارک به لاس ته راوړي ، ژور نظر به پرې اچوي او د علمي موادو څخه به ګټه اخلي کله چې شاګرد د خپل استاذ لیاقت ووینې نو د پوره باور له مخې یې خبروته په دقت متوجه کېږي او ترې استفاده کوي .

**۵- د شاګردانو په طبیعت ځان پوهول :**

استاذ به دشاګردانو په طبعي تمایلاتو او نفسي رغباتو ځان پوهوي او د هغوی په رعایت کولو سره به خپل معلومات دوی ته لیږدوي ځکه ترڅو چې د مخاطب او شاګرد عقل ، فهم اونفسي تمایل معلوم نشي نو دعوت او تعلیم په سختۍ سره قبلوي او دا ډول رعایت د رسول الله صلی الله علیه وسلم له یو حدیث شریف څخه هم معلو میږي هغه دا چې کله رسول الله علیه السلام معاذ رضي الله عنه یمن ته ولیږه نو یې ورته وفرمایل : ته د اهل کتابو یو قوم ته ورځې لومړی دوی د الله عبادت ته را و بوله کله چې یې الله وپیژاند نو بیایې خبر کړه چې الله پرتاسو په شوا روز کې پنځه لمنځونه فرض کړي دي کله چې یې دا کار وکړ نو بیایې خبر کړه چې الله پر دوی بانډې د مالونو زکات هم فرض کړی دی چې فقیرانو ته ورکول کېږي کله چې یې اطاعت وکړ نو بیا یې ترې واخله او له غوره مالونو څخه یې ځان وساته ( بخاري کتاب الزکوة)

نو د دې اصل په بناء که چېرې د شاګرد د میلان او رغبت پرخلاف کومه طریقه وکارول شي ممکن حساسیت را و پاروي او د زدکړې په لارکې خنډ شي .

**٦- په شاګردانو کې پخپل ځان ویسا (اعتماد )پیدا کول :**

استاذ به په شاګردانو کې پخپل ځان دباورکولو روحیه پیداکوي او ورته به وایي چې الله تعالی په تاسو کې استعداد پیدا کړی ، هر مشکل درس زده کولای شئ یوازې ستاسو په ارادې پورې اړه لري که چېرې زیار وباسئ او زحمت وګالئ ستاسو تعلیمي مشکلات حل کېږي دا ډول روحیه به ورکوي ترڅو هغوی تشویق شي او خپل استعداد په کار واچوي .

**٧- په زده کونکو کې د ابتکار او نوښت روح پو کول :**

استاذ باید شاګردان دې ته تشویق کړي چې دیو مضمون په درس کې دکومې توجیه او د کوم حل په اړه پخپله ابتکار وکړي ، یو مضمون ولیکي او د یو مشکل حل پخپله را وباسي تر څو له یوې خوا تشویق شي او له بل پلوه یې فطري استعداد په کار واچول شي .

**٨- د شاګردانو تشجیع اوهغوی ته جُرءت ورکول :**

استاذ به شاګردانو ته جرأت ورکوي ، د پوښتنې کولو حق به ورکوي تر څو په جرأت او زړورتیا سره خپله پوښتنه مطرح کړي او استاذ به یې په ورین تندي ځواب ورکوي په دې ډول دوی کولای شي خپل مشکل حل کړي .

**٩-د شاګردانو فطرې مواهبو ته وده ور ببنل :**

الله تعالی انسانانو ته ډول ډول استعدادونه او مختلفې قواوې ورکړي دي البته دکېفیت او کمیت له پلوه یو له بل سره توپیر لري نو په تعلیمي سلسله کې استاذ باید د شاګردانو دغه قواوې او استعدادونه تشخیص او وپیژني مثلا له یو چا سره د مطالعې له بل سره د حافظې او له بل سره د لیکنې اومکاتبې او داسې نور مختلف استعدادونه شته چې د الله تعالی له لوري ورکول شوي نو استاذ به دا مواهب تقویه کوي او شاګرد ته به د دې شرائط برا بروي تر څو له دې استعدادونو څخه کار واخلي کله چې یې استاذ تشویق کړي دغه استعدادونه یې لا نور لوړېږي.

**۱۰- د شاګردانو په منځ کې ورور ولي او تعاون روزل :**

ددې لپاره چې تعليم او زدکړه داطمئنان او صميميت په فضاء کې تر سره شي دا ضروري ده چې د شاګردانو په منځ کې د ورور ولۍ او تعاون روح پيداشي تر څو يوله بل سره د ورونو په شان ژوند وکړي او يو له بل سره په هر مشکل په ځانګړي ډول په تعليمي مشکلاتو کې مرسته وکړي نو استاذ بايد داسې فضاء رامنځ ته کړي چې دوی ټول د ورونو په شان سره و اوسي .

**۱۱- د شاګردانو د عقائدو او اخلاقو جوړول :**

استاذ به دشا ګردانو عقائدو او اخلاقوته تر هرڅه زياته توجه کوي ځکه زمونږ د تعليمي لړۍ مهم او عمده هدف همدغه دی نو دغه دنده د استاذ په اولنيو موخو کې راځي تر څو شاګردانو ته د اسلام او مذهب سپيڅلې عقيده په ټوله تعليمي سلسله کې په وار وار تشريح کړي ، د هغې حقانيت په مستندو دلائلو ورته ثابت کړي او بيا يې په انفرادي او اجتماعي ډول ورځخه و پوښتي او په عمل کې يې هم پوره مراقبت وکړي تر دې چې ورځخه مطمئن شي ، په ځانګړي ډول د وخت د فاسدو او باطلو عقائدو لکه يهوديت ، نصرانيت ، شرک او داسې نورو مذهبي انحرافاتو او بدعتونو د بطلان او فساد دلائل ورته تشريح او تو ضيح کړي او هم اسلامي سپيڅلي اخلاق عملا ور وښيي په تيره بيا پخپله استاذ بايد د نيکو اخلاقو پيکر او عملي مثال وي تر څو شاګردان يې پيروي وکړي.

**۱۲- شاګردان جهاد ته هڅول:**

نن سبا اسلامي نړۍ دنړيوال کفر تر يرغل لاندې ده او نړيوال کفري ائتلاف د يهوديت او نصرانيت تر مشرۍ لاندې د اسلام دسپيڅلي دين پر مځکني ، اخلاقي او عقيدوي حريم تيری کړی او په اسلامي ملکونو کې يې په مختلفو بهانو او پلمو په نظامي حضور سره د مسلمانانو پر عقائدو ، اخلاقو او مقدساتو حملې کړي ، دوی د خلکو اذهان مغشوشوي او د جهاد په اړه ورته تشويشونه پيداکوي نو د استاذ مکلفيت دی چې شاګردانو ته دجهاد فلسفه ، تاريخ ، لوړمقام او داسلامي ټولنې لپاره دهغه ضرورت او د اسلامي حريم د ژغورلو او ساتلو په لار کې د جهاد اهميت شاګردانو ته تشريح کړي او د جهاد اصلي څيره او بڼه ور وښيي او په هره برخه کې قناعت بښونکي دلائل وړاندې کړي .

**۱۳-په شاګردانو کې د مکلفيت او مسئوليت احساس وېښول:**

دا يو حقيقت دی چې يوه ټولنه هغه وخت دبرياليتوب او نيکمرغۍ پړاو ته رسيږي چې د هغې رهبري د علم او تدبير په اصولو ولاړه وي ، د اسلام سپيڅلي دين دغه اصل ته زياته توجه کړې ده او د ټولنې د جوړښت او موفقيت لپاره خپل اصول او مقررات لري لکه د مسئول ټاکل ، د هغه مواصفات او مکلفيتونه ، د هغه حقوق او واجبات او داسې نور د ټولنې ټول تشکيل او جوړښت پکې روښانه دي چې علم او پوهه په کې اصلي معيار او انتخاب دی ، الله جل جلاله د حضرت طالوت د انتخاب په اړه فرمايي :

( إِنَّ اللَّهَ اصْطَفَاهُ عَلَيْكُمْ وَزَادَهُ بَسْطَةً فِي الْعِلْمِ وَالْجِسْمِ ) البقرة 247 ترجمه : وويل (نبي) چې بيشکه الله غوره کړی دی دا طالوت په تاسې باندې او زيات کړی يې دی هغه له جهته د پراخۍ په علم او جسم کې .

الله تعالی په دې کې د مسئوليت اصلي معيارونه روښانه کړل چې هغه علم او جسمي طاقت دی او دا ځکه چې ديوې ټولنې مشري او رهبري کول لوی مسئوليت دی چې يوازې هغه څوک يې په غاړه اخيستلای شي چې له يوې خوا د موجودو شرائطو په مقتضا او غوښتنو پوه او علم ولري اوله بلې خوا پکې خپل شرعي او اسلامي مسئوليت و پيژني چې دا هرڅه علم ته ضرورت لري نو استاذ بايد پخپل علمي ماحول کې چېرې

چې دده شاګردان وي داسې شخصيتونه و روزي چې که چېرې د ټولنې اړتيا ورته پيښيدله نو سمدستي مسئوليت ته اوږه ورکړي او د اسلامي ارشاداتو په رڼا کې خپله دنده پر مخ بوزي .

**۱۴- د شاګردانو په وړاندې په ورين تندي درس اورول :**

شاګردان د استاذ لپاره د اولاد حيثيت لري او شاګردان هم ورته د پلار په سترګه ګوري او د شفقت هيله ورځخه لري نو استاذ ته په کارده چې په ټول تعليمي چاپيريال کې دشاګردانو په وړاندې بشاش او په ورين تندي واوسي پوښتنې او مشکلات يې په پراخه حوصله حل کړي ځکه چې نيک اخلاق خو له يوې خوا غوره صفت دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي : (انما بعثتُ لاتمم مکارم الاخلاق) او له بلې خوا يو له بل سره د محبت پيدا کېدلو سبب ګرزي او په دې صورت کې د استاذ خبرو ته پوره غوږ نيسي او تعليمي لړۍ د صميميت په فضاء کې پر مخ درومي. نوربيا....

شیخ الحدیث اسحاق زی

# په اسلام کې دخلیفه یا امیر ټاکلو لاره

ان الحمدالله وصلاة والسلام على رسول الله صلى الله عليه وسلم.

دعالم اسلام د ټولو علماؤ په منځ کې پدی باره کې کوم اختلاف نشته چې مصدر د ټولو تشرعی حکمونو چې عبارت د اوامرو او نواهیو څخه دی فقط او فقط دالله سبحان وتعالی رب العزت سره دی، او په مبادی او اصولو دتشریعاتو کې هیڅ څوک ورسره شریک نه دی. او شناخت ئی د وحی متلو او غیر متلو دخپل رسول صلی الله علیه وسلم ته فرمائلی دی او پدی کې ثابت ضمانت دانسان دحریت لپاره، د انسانی کرامت دعدم استبداد دچا سره او پدی باره کې قرآنی نصوص دالله رب العزت ثابت دی. دسوره یوسف نمبر آیت (۴۰) (إِنِ الْحُكْمُ إِلاَّ لِلَّهِ)چې دحکم زمانت خاص الله لره دی دغه رنګه دسوره آل عمران ( ۱۵۴) نمبر آیت کې (إِنَّ الأَمْرَ كُلَّهُ لِلَّهِ) او د سوره غافر( والحکم لله العلی الکبیر)آیت نمبر ( ۴۰) نو ددینی اصولو پر اساس که په یو کار کې شرط فاسد شو نو مشروط هم فاسیدیږی، دانسانانو دپیدایښت سره سم کله چې الله رب العزت دابوالبشر آدم علیه السلام او سیدنا هوا رضی الله عنها دواړو ته په جنت حکم وکاوه (وَلاَ تَقْرَبَا هَـذِهِ الشَّـجَرَةَ فَتَكُونَا مِنَ الظَّالِمِينَ)سوره بقره، چې تاسی دواړه دی ونی یا بوټی ته مه نژدی کیږی، نو د ورنژدی کیدلو په صورت کې به تاسی دواړو له خپل حد څخه تجاوز کړی وی، داول رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه بیا تر آخر رسول محمد صلی الله علیه وسلم دی ټول مسلمانان د الهی احکامو په منلو او عمل کولو مامور وه، لکن ننی مسلمانان چې دکومو ناخوالو، ربړونو، بدبختی ، شقاوت او دغیرو مسلمو تر اسارت او مریتوب لاندې دکوم دنیائی اواخروی پیغور او شرمندګې سره مخامخ دی یوازنی علت یی دخپل رب، خالق دالله جل جلاله وحکمونو ته شاکول دی، اودخپل ژوند هغه که په انفرادی توګه یا ټولنیزه توګه دی ، دانسانی کفری وضعی او مزخرفو قوانینو منل او خپل سرمشق ګرزولی دی، سره لدی چې د قرآن مجید دمکی سوه تونو ډیره برخه دانسانی ټولنی دتیرو واقعاتو او دهغوی د تباهی اسباب الله جل جلاله په خپل کتاب کی واضح بیان کړیدی، چې ننی اسلامی ټولنی باید له هغه څخه عبرت اخیستی وای او الهی حکمونو ته ئې سرونه ټیټ کړی وای، خو افسوس داسلامی نړۍ فاسدو او د الله جل جلاله دحکمونو څخه لیری مسئولینو دخپل هوا او خواشاتو دغوښتنو له وجهی الهی احکامو ته شاکړی، او بیلاقید او شرط څخه دکفر او کفارو په غیږ کې خپل دخودخواهی دنیاوی کامیابی وینی او ګوری، ځکه نو دوي فاسد او رعیت ورسره فاسد او بی لاری شو. او دالهی احکامو له منلو څخه منحرف دی، او الهی احکام دخپل ژوند دکړنلارو سره په تکر او ضدیت کې وینی، پدې مضمون کې ما کوښښ کړی چې د الهی احکامو په رڼا کې د مسلمانانو لپاره خصوصاً هغه چا لره چې دننی کفری وضعی قوانینو (دموکراسی) دانتخاباتو سیستم لره (عیاذاً بالله) درسول صلی الله علیه وسلم دصحابه ؤ رضی الله عنهم منهج بولی ، او مشروعیت ورکوی ، حال دا چې په اسلام کې دخلیفه یا امیر ټاکل لدی ناوړه تګلاری سره ډیر توپیر لری، ان شاء الله دمضمون په وړاندې کولو سره دواړی تګارې او دهغوی توپیر مقایسه کړو، ددی مدعا د اثبات لپاره دالهی احکامو په رڼاکې لاندنې آیتونه وړاندې کوو، چې دهر باشعوره او عقلمند انسان دمنلو

لپاره بس او کافي دی، دسوره اعراف (وَهُوَ خَيْرُ الْحَاكِمِينَ) ۸۶ نمبر آيت چې بهترين حکم کوونکی الله دی. او يا دسوره مائده (وَأَنزَلْنَا إِلَيْكَ الْكِتَابَ بِالْحَقِّ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ مِنَ الْكِتَابِ وَمُهَيْمِنًا عَلَيْهِ فَاحْكُم بَيْنَهُم بِمَا أَنزَلَ اللّهُ وَلاَ تَتَّبِعْ أَهْوَاءهُمْ عَمَّا جَاءكَ مِنَ الْحَقِّ) آيت نمبر۴۸ (يعنی فيصله ددوی (انسانانو) په منځ کې دالله دحکم مطابق وکړه، په هغه څه چې تالره نازل شويدي چې هغه حق دي، او د دوی دنفسی خواهشاتو څخه ځان وساته، او يا دسوره مائده ۴۵ – ۴۶ – ۴۷ نمبر آيتونو کې (وَمَن لَّمْ يَحْكُم بِمَا أَنزَلَ اللّهُ فَأُوْلَـئِكَ هُمُ الظَّالِمُونَ (الكافرون) (الفاسقون) نو هر هغه چا چې دالهی حکم مطابق فيصله او عمل ونکاوه نو هغه يا کافريا کافر اويا فاسق دی. نو دننی حاکم مسلمان وفيصلی ته خو هم لږ وگوره او فيصله وکړه،

وَقَفَّيْنَا عَلَى آثَارِهِم بِعَيسَى ابْنِ مَرْيَمَ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ مِنَ التَّوْرَاةِ وَآتَيْنَاهُ الإِنجِيلَ فِيهِ هُدًى وَنُورٌ وَمُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ مِنَ التَّوْرَاةِ وَهُدًى وَمَوْعِظَةً لِّلْمُتَّقِينَ ٤٦ وَلْيَحْكُمْ أَهْلُ الإِنجِيلِ بِمَا أَنزَلَ اللّهُ فِيهِ وَمَن لَّمْ يَحْكُم بِمَا أَنزَلَ اللّهُ فَأُوْلَـئِكَ هُمُ الْفَاسِقُونَ)

نو ځکه دامت مسلمه مأموريت دالهی احکامو پرتنفيذ لازمی او ضروری دی، او مسلمانان دالهی احکامو د تنفيذ لپاره په ځمکه د الله له طرفه وکلاء دی او په رعايت دتنفيذ اوتطبيق دشرعيت او په هغه پوهيدل



اوډزوند دټولو معاملاتو تنظيمول دشريعت تر حکم لاندې لازمي اوضروري دي لکه چې الله جل جلاله دسوره بقره به (۳۰) نمبر آيت کی (وَإِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلاَئِكَةِ إِنِّي جَاعِلٌ فِي الأَرْضِ خَلِيفَةً) نودا آيت دحکم مطابق د انسان خلافت په ځمکه کې ثابت شو اوبل آيت مبارک دسوره اعراف آيت نمبر۶۹ کې داسی فرمايلی دی (وَاذكُرُواْ إِذْ جَعَلَكُمْ خُلَفَاء مِن بَعْدِ قَوْمِ نُوحٍ) نو درپه زړه کړی هغه وخت چې ما تاسې دنوح عليه السلام دقوم ترهلاکت وروسته دځمکی دخلافت واک تاسې ته درکړ، او يا دسوره يونس : ۱۴ نمبر آيت کې داسې فرمايلی دی (ثُمَّ جَعَلْنَاكُمْ خَلاَئِفَ فِي الأَرْضِ مِن بَعْدِهِم لِنَنظُرَ كَيْفَ تَعْمَلُونَ)نوبيا مونږ او تاسې تر هغوی وروسته دځمکی خليفه گان کړی او وبه گورو چې تاسې څرنگه عمل کوئ، او يا دسوره انعام : ۱۶۵ نمبر آيت کې داسې فرمايلی دی (وَهُوَ الَّذِي جَعَلَكُمْ خَلاَئِفَ الأَرْضِ) نو الله تاسې ته

په ځمکه کې دخپل نيابت واک درکړ نو ځکه پر خليفه او نائب باندې تنفيذ داحکامو دمستخلف لازمی دی، لدی جهته الله رب العزت دسوره نساء به ۵۸ نمبر آيت کې داسې فرمايلی (إِنَّ اللّهَ يَأْمُرُكُمْ أَن تُؤدُّواْ الأَمَانَاتِ إِلَى أَهْلِهَا وَإِذَا حَكَمْتُم بَيْنَ النَّاسِ أَن تَحْكُمُواْ بِالْعَدْلِ)په يقين سره الله تاسې ته حکم کوی چې تاسې دخپل امارت يا خلافت پر وخت دشريعت مطابق په عدل سره دخلکو په منځ کې فيصله وکړی، نو عدل او انصاف خو په شرعی حکم کې دی او دا منصب بايد وهغه چاته ورکړی شي چې امين ، صادق، ريښتنی په الهی احکامو پوه، زړه ور او آزادمنش مسلمان وی او يا دسوره نساء ۵۹ نمبر آيت مبارکه کې (يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ أَطِيعُواْ اللّهَ وَأَطِيعُواْ الرَّسُولَ وَأُوْلِي الأَمْرِ مِنكُمْ) يعنی تاسی د الله اودهغه درسول صلی الله عليه وسلم او دخپل اولاامر اطاعت وکړی چې د اولاامر صفات وړاندې ذکر شول، اولاامر

په تاسو کی تر ټولو متقی کیدای شی لکه چې الله فرمائی : ( ان اکرمکم عندالله اتقی کم)نو په اسلامی شریعت کی د ټولو مصدر وحی ادهی دی چې عبارت له قرآن کریم ، دوهم سنت نبوی صلی الله علیه وسلم ، دریم اجتهاد اجماعې دذوی الفکرو له نظره چې په ادراک دفضلایاو ددینی او د نیوی مسائلو لکه ( تجارت، طبابت، زراعت. فنی حرفی ) او هم فردی اجتهاد دمجتهدینو علماؤ کرامو چې هغه به مومن به الله او دهغه پر رسول صلی الله علیه وسلم وی.

او دوی به په مدرکونو او اقسامو دشرعی احکامو او لارې دا ثبات دهغو چې عبارت دقواعدو او احکامو اثبات لکه قیاس، استحسان، استلاح، عرف او عادت ، سدزرائع او قول د صحابی دی. او حکم به د اسلام دروح مطابق د اسلامې شریعت دمقاصدو سره برابروی ، سوره نسأ ایت نمبر(۵۹) کی داسې فرمایلی دی ( فَإِن تَنَازَعْتُمْ فِي شَيْءٍ فَرُدُّوهُ إِلَى اللَّهِ وَالرَّسُولِ إِن كُنتُمْ تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ ذَلِكَ خَيْرٌ وَأَحْسَنُ تَأْوِيلاً) دامیر د مسلمانانو دا فرض دی چې دامت مسلمه دمتقی علماؤ شوری ورسره په څنګ کی موجودیت ولری او امیر به دعلماؤ دشوری داکثریت غړو متابعت کوی، لاندې دری حدیثونه زموږ دمدعا لپاره ډیر ښه ثبوت دی.

۱ - (یدالله مع الجماعة) رواه ترمذی]

۲ - (علیکم بالجماعة والعامة) رواه احمد]

۳-(اتبعوا لسواد العظم) رواح ابن ماجه].

دغه رنګه دسوره آل عمران : ۱۵۹ آیت (وَشَاوِرْهُمْ فِي الأَمْرِ).

او یا لکه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ، ابوبکر صدیق او عمر رضی الله تعالی عنهما ته فرمائی ( لواجتمقما فی مشورة ما خالقت کما) حدیث ابن کثیر له حولبی څخه نقل کړی دی . او یا لکه چې سیدنا عمر دصحابه کرامو شپږ کسیز شورا ته په باره د بیعت دسیدنا عثمان رضی الله عنه حکم کړی ؤ او د ډیرو مهمی مبادی داسلام پدی مصدر کی عبارت له شورا دمسلمانانو څخه چې دهر ډول استبداد مخه په مختلفو صورتونو کې نیسې لکه چی رسول الله صلی الله علیه وسلم پدی باره کی داسې فرمایې ( لن ترکتم فیکم امرین لن تدلو ماتمسکتم بهما کتاب الله وسنتی ) نص د اسلامی شریعت بهتری او اولویت بیانوې او دهر مسلمان څخه په دی دواړو سره د عمل او عقیدې غوښتنه کوې او که کوم حاکم له دی دوو وصولوڅخه مخالفت کوې ( اذلاتعته لمخلوق فماسیة الله خالق) نو بیا د هیڅ حاکم اطاعت ضروری ندی، نو پورته دلایلو څخه دا ثابته شوه چې بیدون د الله څخه بل هیڅ چا لره په حقیقت کې د تشریعی امورو حق نشته . هغه که حاکم وی او یا معینه ډله او یا دغه رنګه ټول امت ، او د الله کتاب پدی خبره ځکه ټینګار کوی چې بغیر د الله او دغه د رسول صلی الله علیه وسلم د اوامر د منلو څخه اجازه نشته ، کله چې الله رب العزت د سوره احزاب په ۳۶ نمبر آیت کی داسې فرمایې (وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ وَلاَ مُؤْمِنَةٍ إِذَا قَضَى اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَمْرًا أَن يَكُونَ لَهُمُ الْخِيَرَةُ مِنْ أَمْرِهِمْ) هیڅ مومن مسلمان لره هغه که نر وی او یا ښځه دا حق نشته چې الله او د هغه رسول صلی الله علیه وسلم د یو کار په باره کې حکم کړې وې او دی له خپله ځانه څه وکړې . او یا د سوره نساء ایت نمبر۶۵ (فَلاَ وَرَبِّكَ لاَ يُؤْمِنُونَ حَتَّىَ يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ لاَ يَجِدُواْ فِي أَنفُسِهِمْ حَرَجًا مِّمَّا قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُواْ تَسْلِيمًا) نو قسم په رب ستا سره چې دوی مسلمانان کیدی نشې ترڅوچې ستا پر فیصله راضی نشې او هغه ته بلا قید او شرط تسلیم نشې ، او یاسوره نور ۶۳ نمبر آیت (فَلْيَحْذَرِ الَّذِينَ يُخَالِفُونَ عَنْ أَمْرِهِ أَن تُصِيبَهُمْ فِتْنَةٌ أَوْ يُصِيبَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ) صدق الله د ننی مسلمانانو حالت وګورې چې په څومره ستر بلاو او فتنو کې راګیر دې او څومره لوی لوی عذابونه ورته متوجه او مسلمانان پکښې اخته دې. د رسول الله صلی الله علیه وسلم تر وفات وروسته د صاحابه وو کرامو هم پر دی سمی لارې داسنت ؤ او کله چې ابوبکر رضی الله عنه د څه خصومت او یا عامو قضایاؤ حاجت پیدا شو نو اول به یی کتاب الله ته مراجعه کوله . او که به یی کتاب الله کی ونه مونده نو بیا به یی وسنت درسول الله صلی الله علیه وسلم ته مراجعه کوله.

..... نوربیا

# په افغانستان کې د سولې په اړه ناسم تصورات

لیکنه: منهاج

سوله په دوه ډوله ده:

اول ـ ربښتونې سوله

دوهم ـ د کابل اوسنیو واکمنانو ته د حکومت کولو خوندي فرصت برابرول.

د سولې لپاره د هیواد، سیمې او نړۍ په کچه اوس چې کومې ناري پورته کېږي او هلې ځلې روانې دي، که ژور فکر ورته وشي په هیواد کې د ربښتونې سولې لپاره نه دي، بلکه د دې لپاره دي چې اوسنیو واکمنانو ته له جګړې څخه د حکومت کولو خوندي فرصت برابر شي او په ډاډه زړه ورسپارل شوې موخې پر مخ بوزي.

د اوس لپاره په هیواد کې دسولې لپاره بېلابېل تصورات وړاندې کېږي چې نیږدې ټول یې د ربښتونې سولې لپاره ندي. ځکه له هغه تصوراتو څخه چې وړاندې کېږي دا حقیقت جوت معلومیږي لکه:

اول ـ په سیاسي قدرت کې دطالبانو شریکول

دوهم ـ د سولې لپاره د پاکستان د لمنې نیول

دریم ـ د طالبانو په ضد د تلپاتې او زوروړې جګړې په مټ د سولې راوستل.

لومړی تصور ځکه ناسم دی چې د طالبانو جګړه په سیاسي قدرت کې د شریکېدو او د څو دولتي څوکیو د لاسته راوړلو لپاره نده. که د طالبانو مبارزه د څو څوکیو لپاره وای نو طالبانو به څو کاله دمخه دغه ډول سوله منلې وای او بله دا چې خپل حکومت به یې ړنګولو ته نه وای ورکړی بلکه له امریکایانو سره به یې یو سازش او جوړجاړی کړی وای او د دوی غوښتنې به یې د خپل حکومت د بقاء او رسمیت پیژندو په بدل کې منلې وای.

د سولې دوهم تصور ځکه ناسم دی چې پاکستان په طالبانو هغسې اغیز نلري لکه څنګه چې فکر کېږي او تبلیغېږي.

څنګه چې پاکستان د افغانستان ګاونډی هیواد دی او په پاکستان کې ډېر افغانان د مهاجرو په توګه اوسېږي او طالبان هم د افغاني ټولنې یوه برخه ده نو شونې ده چې پاکستان د طالبانو له ځینو مجبوریو نه په سؤ استفادې په طالبانو یو ډول فشار راولي، خو طالبان دې ته نشي مجبورولای چې د خپلې مبارزې له اهدافو نه یې تیر او د کابل واکمنانو ته یې تسلیم کړي. او دا یوه غیر عملي فرضیه ده.

د سولې د دریم تصور ناشونې توب هر د سلیم عقل خاوند ته معلوم دی، له تیرو پنځلسو کلونو را پدېخوا موږ د دې شاهدان یو چې طالبان د امریکا او ناټو د ټول نظامي، استخباراتي او تبلیغاتي زور سره سره بیا هم مخ په پیاوړي کیدو دي او اوس یې په سیمه کې د یو مطرح نظامي او سیاسي ځواک په توګه خپل شتون ثابت کړی. آن د سیمې او نړۍ ستر قدرتونه له دوی سره د روابطو او تماسونو په لټه کې دي.

د طالبانو اوسنی مبارزه د انګریزانو، روسانو او د دوی لاسپوڅو سیکولرانو، کمونستانو او نشنلستانو په ضد د هغې مبارزې تسلسل دی چې له تیرو دوه سوه کلونو راپدیخوا په بیلابیلو وختونو کې د افغانستان د آزادۍ او په افغانستان کې د سوچه اسلامي شرعي نظام د حاکمیت لپاره دوام پیدا کړی.

په افغانستان کې ربښتونې سوله هغه مهال راتلای شي چې کله د افغانستان سیکولران، کمونستان، نشنلستان او د دوی سیمه ایز او نړیوال ملاتړي د افغانستان تاریخي او عیني حقایقو ته تسلیم شي او د افغانانو د اسلامي عقیدې، اصیل افغاني فرهنګ او جغرافیې د تغیر له سیاست او ستراتیژۍ څخه لاس واخلي.

افغانان پریږدي چې په آزاده او آبرومندانه توګه د اسلامي شرعي نظام تر سیوري لاندې ژوند وکړي او واکمنان یې دینداره، آزاد او صالح اشخاص شي، نور افغانستان د تروریزم سره دجګړې، آبادۍ، تمدن او تهذیب او پرمختګ په نومونو د بدبختیو کندې ته ورتیل نه وهي.

له دې څخه پرته په افغانستان کې نه ربښتونې سوله راتلای شي او نه جګړه ختمیدای شي، که کموالی پکې راځي دا به هم د لنډ وخت لپاره وي.

# د سولې په نامه څه روان دي؟

حقمل ضیاء

له دري لسیزو اوږي چې په هیواد کې کشمکش او ناندرۍ روانې دي؛ دغه ناندرۍ بېلابېل اړخونه او بېلابېل عوامل لري خو په ټوله کې اصلي اړخونه او عوامل یې د بهرنیو یرغلونه، د نړۍ د زبر ځواکو قدرتونو له لوري د دې مسلمان ملت د ځپلو هڅه، د کفارو له لوري په دې اسلامي خاوره کې د یو سوچه اسلامي نظام د نفاذ د مخنیوی هڅه، د هیواد په داخل کې د کفر پلوو او اسلام دښمنه عناصرو شتون او له یرغلگرو سره د هغوی ملگرتوب، د هیواد سوق الجیشي او با اهمیته موقعیت او بل اخیره له دغو ټولو مشکیلاتو سره د اسلام او هیواد د اصیلو بچیانو مقابله او مقاومت دي.

په هیواد کې دننه او بهر ډېر کارپوهان دا نظر لري چې دغه مسئله له نظامي لوري نه شي حل کېدی ترڅو چې د سوله له لارې د هیواد خلک یو توافق ته ونه رسېږي په کابل کې اوسنۍ امریکا جوړ رژیم د همدې فکر له مخې دعوه کوي چې دوی په هیواد کې د روانو حالاتو د سوله یز حل لپاره د سولې د شورا په نامه یو شورا جوړ کړی چې د سولې له لارې روانو ناندریو ته د پای ټکی کېږ دي؛ خوداچې په حقیقت کې څه روان دی ستاسې پام لاندې څو ټکو ته اړوم.

**د کابل د سولې شورا:**

دغه شورا له څو کالو را هڅې فعالیت کوي، په مختلفو وختونو کې غونډې جوړوي، بېلابېلو هیوادونو ته سفرونه کوي، د هیواد په بېلابېلو ولایتونو کې د طالبانو د تسلیمۍ دعوې کوي او سولې په پروسه کې د پرمختگ خبرې کوي؛ خو په حقیقت او واقعیت کې هیڅ کوم پرمختگ نه ښکاري؛ نه د سولې پروسه پیل شوی، نه تر اوسه اعتماد سازي شوی او نه هم د تسلیمۍ پروسې پرته له غولونې کومه گټه لرلې ده.

**د سولې لپاره اراده:**

د کابل ادارې که څه هم د سولې لپاره شورا جوړ کړی او خپل ځان د سولې پلوي بولي خو په حقیقت کې له هم هغه پیله د سولې لپاره نه کومه اراده لیدل کېږي او نه هم د سولې لپاره کوم کار شوی دی.

د کابل د ادارې پخوانۍ مشر حامد کرزی چې همېشه به یې د سولې خبرې کولې له یرغلگرو سره تړونونه وکړل او د هغوی د اشغال د اوږدېدو لپاره یې زمینه برابره کړه او په دې سره د سولې مخه ډپ کړه، کرزي همدارنگه په قطر هیواد کې د اسلامي امارت د دفتر له موجودیت سره خپل مخالفت اعلان کړ چې دا هم د سولې لپاره د یوې برابر شوې زمینې مخه نېول وو او همداسې نور...

د وحدت ملي په نامه اداره هم د سولې په برخه کې د کرزي له ادارې څه دومره تفاوت نه لري؛ دوی په ظاهره له کله نه چې د حکومت واگې یې په لاس کې اخیستې د سولې خبرې کوي خو په حقیقت د سولې سخت مخالف دي.

ډاکټر عبدالله د وحدت ملي دحکومت تر تشکیل د مخه به په هغو خلکو توند انتقادونه کول چې د سولې خبرې به یې کولې؛ همدارنگه د حکومت نور لوړ پوړي چارواکي هم په ښکاره د سولې د خبرو سره مخالفت ښایي.

# ګلځونه

## حمد

حمد بی حد آن خدای پاک را
آنکه ایمان داد مشتی خاک را
آنکه در آدم دمید او روح را
داد از طوفان نجات او نوح را

بنده را اره بر سر می‌نهد
دیگری را تاج بر سر می‌نهد
اوست سلطان هرچه خواهد آن کند
عالمی را در دمی ویران کند

آنکه فرمان کرد قهرش باد را
تا سزای داد قوم عاد را
آنکه لطف خویش را اظهار کرد
بر خلیلش نار را گلزار کرد

هست سلطانی مسلم مرورا
نیست کس را زهره چون و چرا
آن یکی را گنج و نعمت می‌دهد
وان دگر را رنج و زحمت می‌دهد

آن خداوندی که هنگام سحر
کرد قوم لوط را زیر و زبر
سوی او خصمی که تیرانداخته
پشه کارش کفایت ساخته

آن یکی را زر دو صد همیان دهد
دیگری در حسرت نان جان دهد
آن یکی بر تخت با صد عز و ناز
و آن دگر کرده دهان از فاقه باز

آنکه اعدا را بدریا درکشید
ناقه را از سنگ خارا برکشید
چون عنایت قادر و قیوم کرد
در کف داود آهن موم کرد

آن یکی پوشیده سنجاب و سمور
دیگری خفته برهنه در تنور
آن یکی بر بستر کمخا و نخ
وان دگر بر خاک خواری بسته یخ

با سلیمان داد ملک و سروری
شد مطیع خاتمش دیو و پری
از تن صابر بکژمان قوت داد
هم ز یونس لقمه با حوث داد

طرفه العین جهان بر هم زند
بندگان را دولت شاهی دهد
بی پدر فرزند پیدا اوکند
طفل را در مهد گویا او کند

بنده را اره بر سر می‌نهد
دیگری را تاج بر سر می‌نهد
اوست سلطان هرچه خواهد آن کند
عالمی را در دمی ویران کند

مرده صد ساله را حی می‌کند
این بجز حق دیگری کی می‌کند
صانعی کز طین سلاطین می‌کند
نجم را رجم شیاطین می‌کند

## دا ولي؟

**منصور دردمن**

ولې باغي له امارته شولې؟
محروم د خدای پاک له رحمته شولې

د رب رضا دې څنګه پرېښودله
زار له عهد او له قدرته شولې

ها د اخلاص وعدې دې و پلورلې
دا چې نن ډک له شقاوته شولې

چې د قدرت او مادیاتو ښکار شوې
عزت دې بایلود بې عزته شولې

هسې په ځان د شهید نوم مه ږده
مرګ دې خراب شو بې شوکته شولې

د چا په فریب او اشارو تېروتې
ولې بې برخې له جنته شولې؟

منصور دردمن دې ځکه غندم اعمال
دین ته دې شا کړه بې همته شولې

عرفان الله عرفاني

# د مینې تصوف

چې پیر د عشق وي یو راز به لري
څوک چې مرید وي نو غماز به لري

چاچې دی کړی تصوف د مینې
په طریقت کې ښه امتیاز به لري

مراقبه کې توجهه چې وکړي
دا تیز نظر کوم یو انداز به لري

چې کله دې ګرم محفل ته ورشي
په صوفیانه رقص کې ساز به لري

د محبوب نوم په ترنم کې اخلي
څوک چې مداح وي خوږ آواز به لري

ستا خانقا کې نوراني ملنګان
له نورو خلکو څه اعزاز به لري

چې کرشمې په تجذب کې کوي
عرفاني خامخا یو ناز به لري

نصیر اشنا

# د ننګونو پګړی

زما د کلتور د عزتونو پګړی
زما د پت او د ننګونو پګړی

لکه شمشاد به دې لوړ شان وي مدام
ښکته به نه شي د سرونو پګړی

راته میراث د خوږ نبي یې پاتې
د پاک نبي د میراثونو پګړی

هسکه شمله به دې ساتم په مینه
زما د هیلو امیدونو پګړی

کفري نړۍ باندې دي رعب خور دی
اې د هیبت او دهشتونو پګړی

هر مجاهد سر نه تړلی یې ته
قربان دې شم د سنګرونو پګړی

په درست جهان باندې دې نوم یادېږي
زما د پلرونو او نیکونو پګړی

ستا کارنامو نه کتابونه ډک دي
د انقلاب د تاریخونو پګړی

درته جهان نن سلامونه کوي
د احترام او عظمتونو پګړی

نصیر اشنا به دې ستایم به جرأت
ښایسته غزل او په شعرونو پګړی



# په جهادي دمطبوعاتو اړتيا او ونډه

محق/سعد كتوازى

له دښمن سره دمسلح جهاد ترڅنګ دمطبوعاتوپه ارزښت اوهغوته په اړتياډيرڅه ويل شوي چې اوس ترډيره له هغه څخه څوک انکار هم نشي کولاى،نوموږبه يې په اړه خبره ډيره نه اوږدوو،خوبياهم چې مطبوعاتي فعاليت له دومره اهميته برخمندده چې حضرت نبي عليه السلام له مسلح مقاومت سره اوږه په اوږه ترسره کړى اودخپلوصحابه کرامو(رض)تحريض اوهڅونه يې کړي اړينه بولم دتحريض ددغه سنت په ځاى کولوسره دنن سباپه جهادکي دجهادي مطبوعاتواړتيااوونډه له خپل نظرسره سم يوځل بياليږ روښانه کړم .

زماليکنه که څه هم لنډه او سريزي ته اړتيانه لري خودښكلالپاره يې دنبي عليه السلام دتحريض په ټکواو ارشاداتو پيلوم چې ورسره به دجهاددمسلح اومطبوعاتي ډګرونه پرتله اودوخت له غوښتنوله پلوه به دهغه اودغه وخت د مطبوعاتي فعاليت څرنګوالى هم جوت شي .

امام بخاري(رح)په خپل مشهور کتاب(صحيح البخاري)کي دحضرت براء بن عازب(رض)په حواله روايت کوي چې داحدپه ورځ له مشرکينو سره زموږله مخکي کيدوسره سم نبي عليه السلام دعبدالله بن جبير(رض)په مشري دغشي ويشتونکويوه ډله په غونډۍ کينوله.........دجګړي په پاى کي ابوسفيان غږوکړاود نبي عليه السلام،حضرت ابوبکر(رض)اوحضرت عمر(رض)نومونه يې يوپه بل پسي واخستل اودهغوپه اړه يې پوښتنه وکړه،خوپه هرواربه نبي عليه السلام صحابه کراموته فرمايل چې ځواب مه ورکوئ،وروسته کله چې ابوسفيان وويل چې که دوى ژوندي واى نوځواب به يې را کړى وو،بس نووژل شوي،داوخت عمر(رض) خپل کنترول له لاسه ورکړ اوورغږيې کړل چې (تادروغ وويل اى د خداى دښمنه ! خداى هغه خلک چې تابه پري رسواکړي ژوندي پري ينښي)ابوسفيان دبوت نوم واخيست چې(هبل)دي لوړوي،نبي عليه السلام صحابه کرامو/عمر(رض)ته وفرمايل چې ځواب ورکړئ اوورته ووايئ چې(الله لوړاولوى دى)،ابوسفيان بياوويل چې موږعزا(بوت) لرواو تاسوعزانه لرى،داځل بيانبي عليه السلام صحابه کرامو عمر(رض)ته وويل چې ځواب ورکړئ اوورته ووايئ چې(الله زموږ مولى دى او تاسومولى نه لرى) .

همدا رنګه امام مسلم په خپل کتاب(صحيح المسلم)کي دحضرت عائشي(رض)په حواله روايت کوي چې نبي عليه السلام خپلو مجاهد شاعرانو ته وفرمايل د قريشوهجوه کوئ چې په دوى باندي دغشوله وارڅخه هم درنه تماميږي.......

عبدالله بن رواحه،کعب بن مالک اوحسان بن ثابت (رض) ته يې يوپه بل پسي-څوک ورولیږل ترڅودشعرپه ژبه دکفارو هجوه وکړي......حضرت حسان(رض)دنبي عليه السلام په غوښتنه د هغه نسب له حضرت ابوبکر(رض)څخه وپوښته.......نبي عليه السلام ورته وفرمايل چې(ترڅوته له الله(ج)اودهغه له رسول(ص)څخه ننګه کوي حضرت جبريل عليه السلام به ستاملاترکوي) .

وګورئ نبي عليه السلام عمر(رض)ته دسفيان دځواب امر کوي اوځواب هم خپله ورښيي ،حسان(رض)هڅوي ترڅو دکفارو هجوه وکړي،همدارنګه نبي عليه السلام به دجهاد سرودونوته خپل ممبرمبارک سمولواودعربوله عادت سره سم يې دسفرلپاره سورلى هم ورته کرايه کړي .

په نني جهادکي چې اوس مسلح مبارزي څومره رنګ بدل کړی له هغه په لوړه کچه مطبوعات هم بل ډول اوښتي،په دي وروستيوکي دمجاهدينودبرياوودڅپوپه را تلوسره چې اوس دښمن دجنګ په ډګرکي له هرډول مقابلي پاتي راغلی او له مطبوعاتي وسائلو څخه دوروستی وسلي په توګه کاراخلي په وړاندي يې خپل ځواک ثابتول اودخپلوبرياووپه ډاګه کول يې تبليغاوه ، لله الحمد موږهم دهمدي مطبوعاتي اورسنيز فعاليت له لاري کولای شواوترسره شوی هم ده ، ځکه په اوسني وخت کي چې دوه ښکيلي خواوي يوبل دمطبوعاتوپه مټ په کوم ډول راپرځولا ی شي په بل هيڅ وسله اووسيله يې هغسي-نشي- راپرځولای .له همدي امله اوس ددوومتقابلوډلوترمنځ دزورازمايني زوروره وسله همدغه مطبوعات دي نوځکه بايدمجاهدين تربل هروخت دامهال مطبوعاتي فعاليتونوته زياته اوځانګړي پاملرنه ولري،مطبوعاتي ډګرد مسلح مقاومت له ډګره په ډيروزياتوفعاليتونوګرم وساتي اوپه مطبوعاتي برخه کي تيروتنه اونيمګړتيادمسلح جګړي له هغوپورته اودرني وبولي .

اسلام چې په پيريودهراړخيزتمدن دسمبول په توګه په تاريخ کي خپل ځای لري دهغه وخت مسلمانان دنړيوال پرمختللي تمدن علمبرداران بلل کيدل وخت په وخت يې دسراوکارخلک له لاسه ورکړل،دخپل تمدن دپايښت اوهغه ته دلازياتي ودي ور کولو رمزونه اورازونه دښمنانودهمدي مطبوعاتوپه زوراومټ تري غلااوجلاکړل او....اوس نوچي دپخوامتمدنه اسلامي نړۍ او مسلمانان کومي ستونزي اوغميزي ګالي اوله کوموبحرانونوسره مخ ده نه له چاپټ دي اونه به دنړۍ په تاريخ کي څوک ورسره مخ شوي وي چې له امله يې په روانه۲۱مه پيړۍ کي مسلمانان دخپل تمدن له سرشاره تاريخ څخه تراروپا پوري۵۰۰کاله شاتګ ته اړ شول، اوس نوچي له يولوري تمدن دغربي نړۍ په برخه دی اوله بل لوري دښمن هڅه وکړه چې دافغانانوله ذهن څخه د خپل يرغل سوچ وباسي اوپه هيوادکي دننه ورته دترفيهي اوتفريحي فرصتونوپيداکولولپاره دلته په لويه پيمانه خپرندويه وسائل وويشي-اودهغوله لاري خپل فرهنګ،اجتماعي اواخلاقي بي لاريتوبونه اودغربي ډوله ژوندناولي بنستونه هيواد والوته وښيي

وينود افغان غيور،باتوراوسوچه مسلمان ملت ځوانانولاهم دهغي په لورپه تر ټولو سختو شرائطوکي،دستروغميزوپه بدرګه او لويو ضائعوپه بدل کي ننني متمدني نړۍ ته کډي يوړي ......په داسي چلونودښمن دهيوادډيرځوانان ايل اوزموږڅخه بيل کړل . ديته په کتوسره ددي ويره ده چې په را تلونکي کي به هغه خلک هم له لاسه ورکړوچي يواځي په هيواکي ديوسوچه اسلامي حکومت لپاره هلي ځلي وکړي،چاري يې سمبال کړي اوهيوادنی توازن ترنظرلاندي راولي .داخبره تردي پوري کوم چې موږکه څه هم تړډيره بريده اړينه .....خومطبوعاتي ډګرته موکومه ځانګړي پاملرنه نه ده کړي نوځکه مودخپل نړيوال هراړخيزتمدن لوړبرم له لاسه ورکړی،ورکوويې اووربه يې کړو.

هو!داهرڅه به زموږدجهادله مطبوعاتي فعاليت څخه دخلاوپه دغه ډګرکي دنيمګړتياله کبله وي،ډيروخت دښمن د مطبوعاتوله لاري دمجاهدينوپه وړاندي عام ذهنيتونه اشغال،اغفال،ګډوډاوبدل کړي،دنړيوالو منحرفو رسنيواومطبوعاتوله انحراف څخه نا خبراوپاک ذهنونه زياترله يادومطبوعاتوڅخه په رنګ اخستلوپه تشويش کي کيږي اود مجاهدينوپه اړه له هغه رنګ سره سم فکر اخلي چې په پيل کي يې خورانااوړه پايلي درلودي .موږبايدپه مطبوعاتي ډګرکي هم په دغه روحيه سمبال دداسي ذوق، پوهي،ښي وړتيااومهارت اوهم له مبتکرذهن څخه برخمندخلک ولروچې دمتقابلو مطبوعاتو، تبليغاتواونيوکوپه خوراالخلاص ،ځراکت، ميړانه اوسړه سينه ټکي په ټکي غوځ ځواب وکړي،زموږپه مطبوعاتوکي واقعيتونه په رښتيني اوداسي بڼه انځورکړي چې په ټوليزه توګه هرچاته د منلواو تائيدوړوګرځي،دهري پيښي په اړه په اساني سره په ډيرليږاولنډوخت کي د اسلامي امارت دريځ اوغبرګون په سمه توګه مطبوعاتوته وړاندي کړي اوټولي هغه لاري چاري ور کي خپلي کړي چې دښمن ته په دي برخه کي هم پخه ضربه اوټکان ور کولای شي،ولس چې څومره زيات د مجاهدينو د مطبوعاتو له لاري حقائقوته لاس رسي ولري په هغه کچه داسلامي امارت له

دریـــځ، موخـــواوتګلاري سره بلـــدګرځي د مجاهدینواو ولس تر منځ دباورفضارامنځته او غځیـــږي اوددوی تـــرمنځ دهمغـــږي موکـــه اویو لـه بـل سره دخپلوي احساس رامنځته کوي.

د مطبوعاتولـــــه لاري مورکـــــولای شـــوولس اونړیوالوتـــه خپلـــه حقـــه داعیـــه ورسوو،دوی تـــه خپل ځان ورو پیژنو،هغـــه تورونه چې پـه مـوږاو مسلمان ملت پـوري کـړل شـوي دبیـــان اولـــه واقعیـــت څخـــه دخلکودخبرولوپـــه مـټ تـري خپل بـرأت وښایو،دجهاددلیکوخلاووته ځوانـان اود کـار خلک راخپل کړو،ولس اومجاهدینوته دخپل دریـــځ اوفعالیتونوپـــه اړه پـــه خپـل وخـت ډاډاوروحیـه ورکړو،دمتقابل لـوري رسـنیز تبلیغات اونیوکي دخپل مطبوعاتي ګوزار په چټک غبرګون ورهمغږي کړواو میدان تـري وګټو،وخت پـه وخـت د دښـمن مـوخي او تګـــلاره وپلټـــواورازیې ابرازکړو،خپـــل راتلـــونکی نسـل لاهـم لـه خپلوسرښـاره ایثاراوفداکاریوڅخه باخبره وساتو او په دغه ولوله یې سر لـه اوسـه داسلام ددښـمنانوپه وړانـــدي ددریدودرســونه ورتـــه برابرکـــړو او.....او.....او.....تراوسه هم زموږ ډیر زیارونه او خواری‌له همدي امله له منځه تللي اوپـه خپلو کارناموکي ځکه نوم ورکي پاتي ووچې پیاده مطبوعاتي کنډکونه مونـه درلـودل چې لومړی یـې خونـدي اوبیـایي پـه خپـل وخـت خپاره کړي .

د مطبوعاتوپـه تـرڅ کـي مسـلمانانوته دمجاهدینو د بریـاوو خبر رسـیږي او هغـوی پـري خوشـالیږي لـه یولـوري مجاهدینوتـه دوعـــاوي کـــوي اولـــه بـــل لـــوري لـــه ډیروملګـروسره دااحساس پیـدا کـوي چې زموږ قرباني بیځایه نه ځي بلکي پـه رنـګ راوړلـوسره دنـوروسربیره پـه ولـس کـي دمجاهدینو ملاتړزیاتوي،دیته په کتوسره په ډیربـه زړه او شـوخه ولولـه قربـاني تـه چمتـــــوالی نیســـــی.....پـه دي توګـــــه دمطبوعاتوزیاتره برخه دمجاهدینو تحریض،له هغوی څخه ننګه اودمسلمه امت ریږدیـدلي وجودتـــــه ځـــــواک اوارام ببنـــــل تشکیلوي،همدارازدښـمن چې کـوم اهـداف دهوایي ځواک اولویولیري نښـه ویشـتونکو توپونواو میزائلوپه مټ په نښه کوي موږکـه داهـــیڅ نـــه لرودمتبوعاتولـــه ډګـــره بـــه دیادومادیاتوپـه بنسـټ ولاړدهغـه مـورال پـه نښـه کـړو چـې نـه بـه بیـا دچورلکـو اوالوتکوپورته کولوته زړه ښه کوي اونه بـه یې دکوم تـوپ اومیزائـل انـداخت تـه بلکي دخدا(ج)پـه نصـرت او زمـوږد مطبوعـاتي وارپه پایله کي بـه لکـه چې وینودغـه ټـول مادیات د مجاهدینولاس تـه لـویږي اوپـه دي ډول متبوعـاتي فعالیت ډیرکـاري تمامیـدای شي . نه به دروغ وي اونه هم لـیري خبـره ده چې ووایـود مطبوعـاتي ډګرمجاهـدین لـه ډیروهغومجاهدینوڅخه چې له دښـمن سره پـه مخـامخ جګـړه کـي برخـه اخـلي زیـات اجرلري،په اخلاص اودثواب پـه نیت دخپلي مطبوعاتي دندي دسرته رسولوپه مهال کـه هغه ته مرګ راځي نو دشهادت په مرتبه کي به له هغوملګرو څخه کم نه وي کوم چې پـه



مخامخ جګـړه اویابمبـاري کـي شـهید شـوی وي،د خدای (ج)په لاره کي دیومرابط(دشپي مهـال پـه جبهـه اوسـنګرکي پـیره کـونکي مجاهد)لـــه ثـــواب څخـــه دمطبوعـــاتي مجاهددشـپي لخواپـه خپلـه دنـده کـي ویښ پاتي کیدلوثواب ځکه لـوړوي چې هغـه تـه دجهادي بوختیادثواب ترځنګ دیـوي شرعـي مسئلي د څیړونکي عالم دشپي روڼولوثـواب هم ورکول کیږي .

نـوچې پـه جهـادکي دمطبوعـاتودومره ستره اړتیااوونډه وي اوبیاداجراو ثـواب لـه پلـوه هـم دمطبوعاتودډګرمجاهدلـه مسـلح مبارزمجاهدڅخـه کـم نـه دي بلکـي لاهغـه مجاهـدین چـې پـه مطبوعـاتوکي دکـار کولووړتیالري خوبیـاهم پـه هغـه کـي کارنـه کوي نوددي ویره شته چې په دي سره به هغـه ګناهګاروي،پکارده چې دمسلح مبـارزي لـه لیکوهم هغه مجاهـدین مطبوعاتوتـه وګـمارل شي کوم چې یې ښـه ذوق اووړتیـالري اوپـه دغه روحیه دلاښه سمبالښت لپـاره دي ټـولي هغه اسانتیاوي هـم ورتـه برابـري کـړلي شي کومي چې ددي میدان دلاغښتلتیالپاره مهمي اواړیني وي.

خبير

# دکابل رژیم اردو

## ولې دتیښتې او تذبذب ښکار ده؟



داخبره مونږ نکوو ، بلکې دهغه چا له خولي دغه ټکي راوځي اوتبصري پرې کوي چې دهمدې اردو دجوړښت اوتمویل نسبت ځانته کوي او وایی چې تردې دمه مو په ملي اردو نیږدي ۴۰ ملیارده ډالر لګښت کړی؛ خو بیاهم اردو اردو نشوه .

دامریکا د( وال استریت ژورنال ) ورځپاڼه دپنتاګون دمتدصدیانو له قوله وایی: دکابل دملي اردو په اساس، تمویل اوجوړښت خبره یوې نیمي لسیزې ته رسیږي او دتجهیز ، امکاناتو اوروزني په برخه کې له هیڅ ډول کمیو اوستونزو سره ندی مخ ، خو بیاهم دجګړې په میدان کې مسلسل شاګرځ کوي اودطالبانو په وړاندې خپلې مورچي خالي کوي .

پیترهایجیک، چې دیولسم سپتامبر په اړه دیوه کتاب مولف هم دی، وال استریت ژورنال ته په مرکه کې دغه پوښتنه چې ولې دکابل ملي اردو دطالبانو په مخ کې دمقاومت اودفاع حوصله اومورال نلري ویلي : شک نشته چې امریکا اوناټو خپل ټول زور اوبه کړ اوهرډول ستراتیژي اووسله یې په افغانستان کې تمرین اووازمویله ، خوبیایې هم طالبان له پښو ونه غورځول، نوچې امریکا اوناټو په دې کار ونتوانیده ، ملي اردو خو په کراتواومراتبو کمزوری لري اوپه عین حال کې دطالبانوقوت اومورال ورته معلوم دی، نوځکه وایو چې دطالبانومقابله دهغوی دوس کار نده.

وال استریت ژورنال ، وایی دتیر ۲۰۱۵ کال په اوږدوکې دکابل ملي اردو له لیکو څخه نیږدې ۴۰ زره عسکر تښتیدلي اوخپلې دندې یې پرې ایښي دي ، چې په وینا یې دادکابل رژیم اوامریکا لپاره دخجالت اوشرم ډک خبر اوټکي لري .

له بل لوري دکابل رژیم دفاع وزارت هم دخپلو زرګونو عسکرو خالیګاه مني چې دندو ته له تګ ورسته بیرته ندي ستانه شوي، خو علت یې له جګړې څخه تیښته اوفرار نه بولي، بلکې نور عوامل ، لکه په جګړه کې ټپونه ، مرګونه اویاکمزوری اقتصادي حالت، ددې سبب ګنې چې ګواکې عسکر یې بیرته دندو ته ندي حاضر شوی او ځایونه یې خالي دي.

خودچارو دکتونکو په اند په نوروعلتونو سربیره یو مهم دلیل چې دملي اردو حوصله اوځواک یې ور خوړلی ،هغه دطالبانو په مقابل کې داردو دعسکرو مرګ اووژل کیدل دی، ځکه ملي اردو زیاتره عسکر په دې سوچ کوي اویادخپلې کورنی له لوري متوجه کیږي چې اخر دچا په مقابل کې جنګیږي اوکه فرضا ووژل شي ، نو مرګ به یې څنګه وي، همدغه وجه ده چې کله داردو کوم عسکر ووژل شي، په عموم کې یې امامان او علماء جنازې کولو ته زړه نه نیسي اوعام خلک یې هم جنازې ته ډیر کم او دګوتوپه شمیر ورځي اودغه حالت په ربښتیا هم په افغاني او اسلامي ټولنه کې دفکر وړ ده.

# څلورجانبه ناسته تیرایستونکي ده!!

عبید تنویر

رسنیو بیا میدان ښه تود کړی، وایی چې په راتلونکي اونۍ کې دسولې په نامه څلور جانبه ناسته چې ممکن دپاکستان په کوربتوب په اسلام اباد کې ترسره شي، ددوئ په اټکل داسلامي امارت استاځي به هم پکې برخه واخلي.

ترکومه بریده چې خبره دسولې اومذاکراتو نوم اوء نوان پورې ربط نیسي ،ښکاره ده چې سوله خوږ نوم او دافغانانو ورته سخته اړتیا ده، اسلامي امارت به هم هیڅکله دهغې سولې او جوړې له ناستې او پراوونو څخه مخ وانه ړوي چې هدف او موخه یې په افغانستان کې رېښتیني سوله او ارامی ته زمینه برابرول وي.

خو داسې نه، چې نوم اوشعار یې دسولې او مذاکراتو وي اوظاهرا زړه خوږی له افغانانو سره ښوول کیږي خو په عمل کې خبره بیا سرچپه او برعکس وي .

اسلامي امارت لکه چې دپګواش په کنفرانس کې ووئیل، چې جنګ په اسلامي امارت او افغان ولس تپل شوی دی؛ څکه هیواد اشغال شوی، اشغالګرو او د دوی داخلي ملګرو یې په هیواد کې یوه فاسده لاسپوخې اداره رامنځ ته کړې؛ نو تر ټولو د مخه باید هغه عوامل له منځه لاړ شي چې په افغانستان کې د سولې له منځه تګ او جنګ د دوام باعث ګرځیدلي دي.

دڅلور جانبه ناستې له اجندا او ترکیب څخه ښکاري چې ددوئ اصلی موخه دامریکایانو په روان اشغال اومستقیم حضور سترګي پټول او دکابل هغې ادارې ته چې اسلامي امارت تقریبا په ګونډو کړې یوځل بیا هغه په پښو درول او نوې ساه پکې پوه کول دي.

که داسې نه وي ، نو دټولو بدبختیو او ستونزو مور او ځاله امریکا ده ، امریکایانو په افغانستان په ناروا ډول یرغل راوړ ، په نورو جرمونو اوجنایاتو سربیره یې زمونږ په لکونو مظلوم وګړي شهیدان اوپه میلونو تنه شکنجه کړل ، چې اوس هم دغه لړئ ته په ډیر وحشت دوام ورکوي ، له بل لوري دکابل رژیم له الفه نیولې تر (ی) پورې ټاکني هم امریکا ترسره کوي او اشرف غني په واز کومې وایي چې که امریکا دیوې ورځې لپاره صرف تیل پرې بند کړي نو نظام یې فلج او له سقوط سره مخ دی ؛ نو چې درواني جګړې، اشغال او دکابل ادارې دتمویل اونورو بدماشیو اختیار دامریکا په لاس کې وي، نو بیا دسولې اومذاکراتو میز ته ولې امریکایان دیوه جهت په توګه نه راوړاندې کیږي.

.اسلامي امارت په دې باور دی چې امریکایان او دکابل رژیم هڅه کوي ترڅو د واقعي سولې په ځای اسلامي امارت تسلیمۍ ته اړباسي، دوی فکر کوي چې لومړی باید اسلامي امارت په نظامي ډګر کې کمزوری کړي، بیا به یې د قوي دریځ څخه سولې ته مجبور کړي؛ خو دا یوازې ځان تیر ایستل دي چې له ځمکنیو حقایقو سره اړخ نه لګوي، د اسلامي امارت تر شا افغان مجاهد ولس ټینګ ولاړ دی، یرغلګر او انډیوالان یې باید ومني چې دنړۍ هیڅ قوت ولسۍ قوت له مینځه نشيۍ وړلای، او نه ستونزه د بې مسولیته او غیر قانوني ټرونونو په لاسلیکولو هواریږي، اصلي خبره دا ده چې د سولې لپاره پخې ارادې او په واقعیتونو ولاړې ستراتیژۍ ته چې په هغه کې د اشغال خاتمه مهم جز دی، اړتیاده، نه دا چې په دې اړه د وینا او عمل ترمینځ یې توپیر وي.

# دشهید الحاج مولوي صاحب

## عبدالحلیم (اولزی) لنډه پیژندنه

شهید الحاج مولوی عبدالحلیم (اولزی) دمرحوم حاجی لعل زی زوی دننګرهار ولایت مهمندری ولسوالی دګردی بابا د قریی اوسیدونکی، په کال 1339 /13/11 ش نیته په یو دینداره کورنۍ کی دنیا ته سترګی وغړولی. ابتدائی زده کړی دخپل کلی په ښوونځی کی سرته رسولی،اود دینی زده کړی لپاره یی ګاونډی هیواد پاکستان ته هجرت وکړاو ابتدائی دینی کتابونه یی د پیښورګنج پیرباغ دمولوی عبدالرحمن څخه لوستلی او دوره صغرا (وړه دوره)په دارالعلوم هادیه کی او فراغت یی امداد العلوم پیښور صدر کی په ممتاز درجه فاضل شوی دی

نوموړی د شهید شیخ الحدیث محمدحسن جان مدنی رحمه الله د لومړیو شاګردانو څخه شمیرل کیږی. څرنګه چې شهید مولوی عبدالحلیم دهجرت په موده 1364 ش کال کی خپلی دینی زده کړی ترسره کولی نو په دغه وخت کی سرو روسانو دافغانستان په پاکه خاوره یرغل کړی وو، او دمقدس جهادسنګرونه یی تاوده وساتل.

شهیدمولوی عبدالحلیم صاحب به دبیلابیلوجهادی مشرانو ترقیادت لاندی جهادی سفرونه کول.کله چه مجاهدینو جلال اباد فتحه کړو نو مولوی صاحب دجهادی ډګر ترڅنګ دینی خدمت ته هم کلکه توجه کوله.

په جلال اباد نجم المدارس مدرسه کی تدریس شروع کړ او ورسره څنګ کی د مسجد قبأ امام هم پاتی شوی .

کله چې په 1375 ش کال په افغانستان کی داسلامی امارت دواکمنی راغله په هغه وخت کی مولوی عبدالحلیم صاحب مختلفی دندی سرته رسولی پدی کی دجلال اباد ښار دښاروالۍ مسؤلیت، ... دخلــــوم ماموریـــــت مســــؤلیت، دپچیراګام ولسوالی مسؤلیت ،د روداتو ولسوالی امنیه قوماندانی مسؤلیت،دطورخم د دروازی نظامی چارو مسؤلیت سرته رسولی دی . کله چه په افغانستان باندی امریکا او متحدینو یرغل وکړ .مولوی صاحب بیا دګاونډی هیواد پاکستان لنډی کوتل سلطان خیلوسیمی ته هجرت وکړ.

کوم وخت چې د یرغلګرو په ضد دامارت اسلامی تشکیلات برابر شول په سرکی مولوی صاحب خپلی مقدسی فریضی ته په ډیره میړانه را ودانګل او دجهاد سنګریی تود وساته.

چې دجهادي تشکیلاتو په سلسله کې شهید مولوي صاحب دتیرو ۱۴ کلونو په اوږدو کې مهم خدمتونه اومسؤلیتونه ترسره کړل چې دبیلګي په توګه دولایتی کمیسون دنده ورسره دانتقالاتو مسؤلیت ، دکوټ مهمنددری او د لعلپوری ولسوالی مسؤلیتونه یادولی شو.

مرحوم دمولوی صاحب ته الله پاک غوره او نیک اخلاق ورکړی وو چې دمجاهدینو اودسیمي دخلکو په زړونو کې یې ځانګړی ځای اومجبوبیت لاره ، هغه یو مصلح اوخیرخواه انسان وو، تل به یې دمسلمانانو اوملګرو ترمنځ دصمیمت هیله درلوده اوپه دې برخه کې به یې زیار وویست بی ساری خدمتونه به دهیچا هیر نشی.اود ډیرو ښواخلاقو یونمونه وه، تل به یی دمجاهدینو په وړاندی پراخ تندی نیولی و.

داسلام دغه بې ریا اوریښتینی خادم. نور داسلام اوهیواد ددښمنانو په سترګو کې تیره ازغی ګرځیدلی وو اوجهادي کارنامي او جرات یې ورته دتحمل وړنه وو نو دروان کال ۱۳۹۴ د۱۱ میاشتي په۳۰ نیټه په داسې حال کې چې دسهار لمانځه اداکولو لپاره جومات دتلو په لار وو سفاکانه اوناځوانمردانه برید ترسره کړه او د۵۵ کلونو په عمر دجهاد او دیانت دغه هستي له خپل حقیقي مالک سره وصل او دشهادت لوړ مقام ته ورسید ،.روح دی ښاد اویادونه دې تل پاتي وي (اناالله وانا الیه راجعون).



# متل څه ته وايي؟

محمد ګل سعيد

متل يوه لنډه جمله ده،چې دمعنى په لحاظ بشپړه اودمفهوم په لحاظ عامه وي.متلونــه دخلکوهغــه ســپيڅلي،پاکې معنى دارې ،لــويى اوورې جملــې دي چــې دولــس دثقافــت ،علــم ،پــوهې اوکــړو وړو ژوندى نمونې ګڼل کيږي.

دمتل ډولونه:متل دموضوع په لحاظ مختلــف شــکلونه لــري لکــه اجتمــاعي ،فکاهي ،سياسي اخلاقي اوداسې نور.

دغــه رازدفــورم پــه لحــاظ مختلــف شکلونه لري چــې پښــتوکې درې ډولــه متلونه پيداکيږي.

۱ـــ منثورمتلونـــه:رواني ،ســـاده اوبسيطې جملې دي چې نه وزن لري ،نه سجع اونه قافيه لکه:

- ✓ دزوى پــه ميرانــه مورلــه ســره ځوانيږي.
- ✓ دظالم عمرلنډوي.
- ✓ غم اوښادي خوراوورودي.
- ✓ دبام په سرمنډه نه کيږي.
- ✓ علت ځي عادت نه ځي.
- ✓ غم په غم دريږي اوبه په ډنډ.
- ✓ دمات لوښي اوازنه خيږي.
- ✓ غوټــه چــې پــه لاس خلاصــيږي خولې ته حاجت نشته.
- ✓ ځمکــه هغــه ســوزي چــې پــه سريى اوربليږي.
- ✓ دميــږي ورکيــدل چــې راشــي وزرکاندي.
- ✓ اوبووړي داوبوځک تــه هــم لاس اچوي.

۲ـ منظوم ډوله اومسجع متلونه:هغــه متلونــه دي چــې پــه پــاى کــې ســجع مراعــات شــوي وي لکــه (جنــګ سورشــوميرى تودشــو)(چې لاړشــي تربلخه درسره ده خپله برخــه) اوداســې نور...

۳ـ منظوم متلونه:علاوه پومسجع وزن اوقافيه هــم ولــري اودبيــت پــه شــکل وي لکه:

- ➢ که باران وي که ږلى
- ➢ ميلمه غواړي ښه مړى
- ➢ اميرچې ظلم کاروي
- ➢ اوربل په ټول دياروي
- ➢ هره شپې لره ورځ شــته ده پــه دنياکې
- ➢ زما عمرجدايى کړبې له نوره
- ➢ درنځور په خوله کې کله مزه کاندي
- ➢ که سل رنګه نعمتونه مهيا وي

پــه شعرکــې دمتــل اســتعمال يوپــوخ فــن اوشــاعرانه طرزګڼــل کيــږي اوپــه شعراونظم کې داطــرزاوروش نــه يــواځې دشعرظاهري زينــت اوزيورزيــاتوي بلکــې دشــعرمحتوا اومضــمون دمعنــوي قــوت دشاعرداســتدلال اوســلامت ســبب هــم کيږي.

البته په شعرکې دمتل استعمال په دریوډولوصورت نیسي چې یوډول یی دمدعاالمثل په نوم یادوي اوهغه دادی چې دشعردیوبیت په نیم بیتی کې شاعریومدعا اویا یو مطلب راوړي اوبیایی په بل نیم بیتي کې دنوموړې مدعادثبوت اوسلامتي لپاره یومناسب متل راوړي لکه:

نصیحت دناصحانواثرنه کا
دسړې اوسپنې خوشې ټکول دی

دویم ډول یی ارسال المثل دی اوپه شعرکې داسې ډول وي چې شاعرپه کوم شعرکې په خاص طرزاوطریقې سره کوم مشهورمتل استعمال کړي.

دگورشپه چیرې دچانه په کورکیږي
غم دچاپه خوشالۍ کله بدلیږي

اودریم ډول یی ارسال المثلین دی.داسې چې شاعرپه یوبیت کې دوه متلونه وکاروي لکه دا لاندې بیلګه:

- څه چې کرې هغه به ریبې
- خپل عمل دلارې مل دی.
- دریغه دریغه که وروستی عقل ړومبی وي.
- دانجام خبرې نه شي په ایغاز.

# عظیم پلار عظیم زوی

د حضرت عبدالله بن مبارک (رحمه الله) پلار غلام وو د خپل مالک په باغ کښي یې کار کوی یو وخت ددې باغ مالک باغ ته راغی او مبارک ته یې وویل چي یو خوږ انار راوړه ده مبارک د یوي درختي څخه انار راوړی مالک چي خوند وکتی هغه تریو وو د مالک پر تندی کونجي راغلې ویې ویل : زه خوږ انار غواړم تا تریو انار راوړی مبارک ولاړی د دویمي درختي څخه یې انار را پرې کړ مالک چي خوند وکتی هغه هم تریو وو مالک په غوصه سو چي زه خوږ انار غواړم او ته ولاړ سي تریو انار راوړي مبارک بیا ولاړی او د دریمي درختي څخه یې انار را پرې کړ اتفاقاً هغه هم تریو وو مالک ته غوصه هم ورغله او حیران هم سو پوښتنه یې ځني وکړه تر اوسه پوري ته د خوږو او تروو تمیز او پیژندګلوي نه سي کولای مبارک په جواب کي ورته وویل : د خوږو او تروو پیژندګوي په خوړلو سره کیدای سي او ما ددې باغ د یوې درختي څخه هیڅ کله هم یو انار نه دی خوړلئ مالک پوښتنه ځني وکړه : چي ولي؟

مبارک ورته وویل : له دې وجهي چي تا د باغ څخه د خوراک اجازت نه دی راکړی او ستا د اجازې څخه بغیره ماته د انار خوراک څنګه جائز کیدای سي دا خبره د مالک پر زړه ولګیده او همدغه خبره په تحقیق کولو سره هم معلومه سوه چي واقعاً مبارک د یوې درختي څخه هم انار نه دی خوړلی مالک د غلام ددې دیانت داری څخه دومره متآثره سو چي د خپلي لور نکاح یې د هغه سره وتړل د هغه (ښځي) څخه حضرت عبدالله بن مبارک (رحمه الله) پیداسو حضرت عبدالله بن مبارک (رحمه الله) ته الله تعالی (جل جلاله) په علماؤ د اسلام کښي کوم مقام ورکړی دی هغه د تعارف محتاج نه دی.

(وفیات الاعیان: ج: ۳ : ص: ۳۲)

# د تعلیم او تربیې او عالي تحصیلاتو کمیسیون لخوا

# په هیواد کې د تعلیمي کارونو د هیئتی راپور

محترمـو لوسـتونکو ! دا دی پـه دې راپـور کـې د تعلـیم او تربیـې او عـالي تحصـیلاتو کمیسـیون دهیئـت د هغـه سـفر جریان چې د زابـل ، غـزني او میدان وردګ ولایتونو ته یې کـړی ؤ پـه لنډ ډول وړانـدې کوو :

څرنګه چې زمونږ د ټولو تعلیمي ادارو تعلیمي کال د رجب المرجب پـه میاشـت کـې پای ته رسیږي خو ځینې تعلیمـي ادارې چـې په ځانګړي ډول مستقیماً د دې کمیسـیون تـر اداري لانـدې دي لکـه د کـویټې د افتـاء او قضـاء د تخصـص اداره ، دکـویټې چمـن او ګردي جنګل دارالایتامونه چې د هغـوتعلیمي جریـان ، امتحانونـه او نـور ټـول مربوطـه کارونـه دکمیسـیون پـه غـاړه دي نـو ددې ادارو‌امتحانات د شعبان المعظم د میاشتې پـه پای کې تر سره شول چې مکمـل جریـان یـې مونږ په درې میاشتني راپـور کـې د امـارت لوړ مقام ته وړاندې کړی دی نو ددې کارونو لـه فراغـت نـه وروسـته د شـعبان المعظـم د میاشتې په ۲۷ نېټه ما (کرامت الله اخندزاده) او مولوي محمدصابر د زابل ولایت په لـوري حرکت وکړ په داسې حـال کـې چـې د زابـل ولایت د تعلیم او تربیې مسئول مولوي فیض الله (ملا لالا ) هم راسره په سفر کې یـو ځـای ؤ همغـه ؤ چـې پـه ۲۸- شـعبان -۱۴۳۶هــ ق نېټه د شاجوی ولسوالی ته ورسیدو زمـونږ پلان داسې ؤ چې یو ځل د ټولـو ولسـوالیو د مدیرانو سره ووینو او لـه هغـوی څخـه خپـل معلومات تر لاسه کړو وروسته بیـا د امکـان ترحده له ځینو ولسوالیو څخه لیدنه وکـړو او د نظامي مسؤلینو ، علماء کرامـو او مخـورو مشرانو سره وګورو

• د ځینــو ولســوالیو د مــدیرانو سره لیدنـه وشـوه لکـه د زابـل ولایـت شـاجوی ، نوبهـار ، دایچوپـان ولسـوالیانې ، لـه هغـوی څخه مو د تعلیمي وضعیت پـه اړه معلومـات ترلاسه کړل .

### ۱ – د شاجوی ولسوالي :

• د دې ولســوالی د مــدیر مولــوي محمداغا (مظلوم) د معلومـاتو لـه مخې پـه شاجوی کې کلیوالي مدرسې پـه ژمـي کـې وي .

دلتـه مکاتـب هـم شـته پـه دوبي کـې شاګردان مکـاتبو تـه ځـي او بـل عمومـاً پـه دوبي کې خلکـو خپـل ولادونـه پـه شخصي- کارونو مصروف کړي وي .

• الحمدلله دینـي درسـونه ډیـر دي یـو سل او درې شپیته (۱۶۳) د طالبـانو حجرې تأسیس او فعالې شوي دي او نورې هم چمتو کیږي .

• ۳۰ بابه ښوونځي پـه مفتوحـه سـیمو کې شتون لري او ۱۰ بابه په بـازار کـې دي چې د ولایـت د نظـامي مسـئول لخـوا اجـازه ورکـړل شـوې ده او د امـارت اصـول پکـې رعایـت کیـږي او زمـونږ لخـوا یـې نظـارت کیږي .

• نظامي مسئولین راسره د ضرورت پـه وخت کې همکاري کوي .

• نغـدي مصـارف د ولایـت د تعلیمـي مسئول لخوا راکول کیږي ، مـوټر سـایکل او مخابره یې هم راکړي دي .

### ۲ – د نوبهار ولسوالي

ددې ولسوالی د مسئول مـدیر مولـوی (مزمل) چې د ۱۳۹۳ ل کال د جوزا پـه شـلم ګومارل شوی

معلومات داسې وو :

• کلیـوالي مدرسـې پـه کلیـو کې موجودې دي چې د شـاګردانو شـمیر یـې یو زر پنځه سوه او پنځه شپیته (۱۵۶۵) تنـو ته رسیږی او د مساجدو امامان ورته سبقونه وایي او د ولسوالی په مرکز کې یوه مدرسـه شته چې ۲۲۲ تنه شاګردان لري او د (۸) تنو

استاذانو لـه خـوا ورتـه تـدریس کیـږي او د اسلامي امارت نصاب پکې ویل کیږي .

- د فیس په هکله که په تـدریجي ډول کوښښ وشي خلک ورته آماد ه کیږي .

- پـه نوبهـارکې ۳۱ تدریسيـ حلقـې (درسونه) موجود دي چې د طالبانو شمیر یـې څلـور سـوه او یوویشـت ( ۴۲۱) تنـو تـه رسیږي او تـر دوره حدیث پـورې زده کـړې پکې کیږي ، دوه نورې مدرسې یوه په اکازو کې (سراج العلوم ) او بله په علیکه کې (نور المدارس) هم شته دي .

- پـه سراج العلـوم او شـمس العلـوم مدرسو کې د تحفیظ القرآن څانګې (شـعبې) هم شتون لري .

- ښوونځي پـه دې ولسـوالۍ کـې بند دي او خلک یې غوښتنه کوي .

- نظامي مسئولین راسره د ضرورت په وخت کې مرسته کـوي ، عـام خلک همکـار دي ، درسي موادو ته ضرورت ډیر دي.

## ۳ـ د دایچوپان ولسوالي

ددې ولسـوالۍ د مـدیر مولـوی عبـد العـلي چې درې کالـه اتـه میاشـتې مخکـې ګومارل شوی داسې و ویل :

- څلو ر بابه کلیوالي مدرسـې فعـالې دي یـوه مدرسـه د فـیس لـه مدرکـه چلیږي او کـه کوښـښ وشي د فـیس طریقـه عملي کیدای شي .

- ۲۲بابه لیلیه مدرسې لـرو ۴ یـې تـر کـار لانـدې دي او نـورې فعـالې دي او پـه درسـونوکې نـږدې څلورسـوه (۴۰۰) تنـه طالبان لرو .

- دلته دوه دارالحفاظونـه شـته په یوه کې ۹ تنه او په بل کې۲۲ تنه حافظان دي او فارغین یې هم شته.

- ښـوونځي پـه دې ولسـوالۍ کې نشته او خلک یې غوښتنه کوي.

- نظـامي مسـئولین همکـاري کوي ، علماء کرام همکار دي.

۴- وروسته بیا د زابـل ولایـت نظـامي مسـئول ( والي ) مولـوي مطیـع الله صـاحب سره تفاهم وشو:

- د زابل ولایت پـه تعلیمـي وضـعیت ورسره خـبرې وشـوې پـه څـانګړې توګـه د شاجوۍ ولسوالۍ د مکـاتبو پـه اړه د هغـوی غوښتنه دا وه که د ښونځیو نظارت پـه سـمه توګه وشي مونږ اجازه ورکـړې ده او ورکـوو یې همکارۍ ته چمتوۀ او بیـا مـو لـه روژې وروسته یو له بل سره د تفصیلي ناستې ژمنه وکړه .

۵- بیا مو په شاجوۍ کې د دې محاذ د عمـومي مسـئول (حبیـب ) سره د نومـوړې ولسوالۍ د تعلیمـي وضـعیت پـه بـاب خبره وکـړه او پـه څـانګړې توګـه د مکتبونـو پـه موضوع مو ورته تأکید وکړ تر څو د لائحـې مطابق یې نظارت وشي هغه لـه دې پریکـړې چې مکاتبو ته د پرانستلو اجازه ورکول شوې خوښ ۀ او د نظارت یې ټینګه وعـده وکـړه د هغه نظر په تعلیمي چارو کی مثبت ۀ او پـه ساحه کې یې عملي اثر درلود .

٦- بیا مو څینی ملاحظـات د ولایـت د تعلیمي مسئول (ملا لا لا )سره شریـک کـړل هغه په نظامي کارونو کې هم ستړی ۀ ترې و موغوښتل خپلو کارونو ته متوجه شي او که ممکنـه وه لـه روژې وروسـته بـه د ټولـو مـدیرانو سره ګـډ مجلـس جـوړوو او د دوی ملاحظات به اورو .

بیا مو د غزني ولایت تعلیمـي مسـئول (مولوی عبد الرشید) سره تمـاس ونیـو او پـه ګیلان ولسوالۍ کې سره یو ځای شوو.

۷- نوموړی هم ډیر ستړی معلومېده له یوه پلوه د غـزني ولایـت یـو پراخـه تعلیمـي ولایـت دی او لـه بلې خـوا هغـه پـه نظـامي دلګي کې هم په کـارونو بوخـت ۀ ، هغـه پـه همدې شپو او ورځـو کـې ډېـرې ولسـوالۍ کتلې وې مونږ لـه ده څخـه اجمالي ګـذارش واخیست او ویې ویل چې تفصیل به یـې پـه دغه راپور کې در واستوم او اوس د روژې د میاشـتې لـومړۍ شـپې او ورځـې دې پـه ولسـوالیو ګرځیـدل ډیـر مشـکل دي ، ځینـې وړاندیزونـه یـې لـرل هغـه مـو تـرې را واخیستل د دوی غوښـتنې مـو د کمیسـیون مشرتابه ته ولیږلې.

صـبا مـو د میـدان وردګ ولایـت ته حرکت وکړ د رمضان المبـارک څلورمـه وه هلته ورسیدو .

## د میدان وردګ ولایت :

د دې ولایت د تعلیم او تربیـې مسـئول مولـوی عبیـدالله اخنـد زاده او مرسـتیال یـې مولوی عبـد الـرحیم (بـزرګ) چې لا د مخه هلته تللي او موجود وو پـه ګـډه مـو فیصلـه

وکړه ترڅو یو ځل د دې ولایت د ټولو ولسوالیو مدیران را بولو او د تعلیمي حالت څخه اجمالاً ځان خبر کړو بیا به که خیر ؤ په تفصیلي توګه د ولایت ټول تعلیمي اړخونه ګورو .

## لــومړی مجلــس ( د رمضـــان المبارک ۱۳\۱۴۳۶هق)

په دغه نېټه د میدان وردګو ولایت د ټولو ولسوالیو د مدیرانو او د ولایت د تعلیمي رئیس او مرستیال په ګډون مو مجلس دائر کړ او د ټولو تعلیمي اړوندو مسائلو معلومات مو وکړ او د ځینو موجوده ستونزو په اړه لاندنۍ پریکړې وشوې :

• د مدارسو او مکاتبو هغه شاګردان چې په نظامي دلګیو کې شامل او له ډېر ضرورت پرته په نظامي کارونو ځانونه مصروفوي سبقونه یې قضاء وي خو کله چې امتحان اخیستل کیږي بیا د خپل دلګی مشر په سپارښتنه بشپړې او پوره نمبرې غواړي په داسې حال کې چې دغه شاګرد زیات وخت غیرحاضر شوی دی نو که پوره نمبرې ورکول کیږي دغه د نورو شاګردانو حق تلفي او د ده د وخت ضیاع ده ، همدارنګه دا ډول عمل د اصولو د نه رعایت کولو په معنی او د بې نظمۍ سبب ده بناءً دغه موضوع باید د ولایت مقام ته وړاندې شي تر څو خپلو دلګیو ته لارښوونه وکړي چې د مدارسو او ښوونځیو شاګردانو ته د زده کړې لپاره پوره وخت ورکړي .

• په ښوونځیو کې ځینې استاذان د ځینو شخصي ملحوظاتو په بنیاد مقرر شوي او د خپل علمي مسلک په لحاظ کمزوري دي چې شاګردان ورڅخه استفاده نشي کولای نو لازمه وګڼل شوه تر څو د ولایت په سطحه یو با صلاحیته هیئت چې علماء کرام او مسلکي استاذان پکې وي د ولایت د تعلیمي مرستیال په مشرۍ وټاکل شي دغه هیئت به بیا د ولایت ټولې عصري تعلیمي اداري ګوري او د استاذانو علمي ، اخلاقي او عقیدوي ارزونه به کوي ، د اداري نظم او کارونه به ګوري او د شاګردانو علمي سویه به معلوموي او یو جامع راپور به تعلیمي کمیسیون ته سپاري .

• د ولسوالیو تعلیمي مسئولین دې د ښوونځیو او مدارسو د نظارت لپاره د منطقې د دیني علماؤ ، مجربو او مخلصو دیني او مسلکي استاذانو څخه هم استفاده وکړي .

• د سویډن د مؤسسې لخوا چې (c.b.s ) د پروګرام لمخې کوم صنفونه په کلیو کې ورکړل شوي د دې لپاره چې د دې پروګرام څخه سمه ګټه پورته شي فیصله وشوه چې د دوي لپاره څه شرائط او سپارښتنې وضع شي او د هغو په چوکاټ کې دغه پروګرام پرمخ بوتلی شي ، شرائط په یوولسو مادو کې ترتیب شول چې په لاندې ډول دي :

۱ – دغه مؤسسه باید د میدان وردګو په ولایت کې د (CBS) د صنفونو د مکمل تشکیل معلومات مونږ ته راکړي چې په هغو کې د ځای تشخیص ، د استاذانو او شاګردانو شمیر معلوم وي ترڅو له یوې خوا یې نظارت وشي او له بلې خوا د مالي او اداري فساد مخه ونیول شي .

۲ – په کلیوالي مدرسو کې به یوازې د حاضرۍ اصول رعایت کیږي د نورو اسنادو ترتیبول منع دي .

۳ – په دغو ټولګیو کې به مروج دیني مضامین لکه قاعده بغدادي ، قرآن کریم ، تعلیم الاسلام ، شروط الصلاة ، خط او حساب لوستل کیږي تر هغې چې کوم بل نصاب د اسلامي امارت لخوا ټاکل کیږي.

٤ – بالغې او په سَترّ مکلفې نجونې دغو ټولګیو ته منع دي .

۵ – دغه کلیوالي مدرسې به د ضرورت په بنیاد تر دریو کلونو پورې وي له هغه وروسته به نورو ښوونځیو او مدرسو ته ځي .

٦ – د دغو مدرسو لپاره به ځای د ولسوالۍ د تعلیمي مسئول لخوا ټاکل کیږي .

۷ – د دغو مدرسو د استاذانو ټاکل به د ولسوالۍ د تعلیمي مسئول لخوا کیږي .

۸ – د هر ټولګي شمیر به له (۲۵) کسانو څخه کم نه وي خو که چیرې دغه شمیره نه پوره کېده نو د ولسوالۍ د مدیر تصدیق به ورسره وي .

۹ – کوم ټولګی چې تر (۵۰) کسانو زیات شي نو به بله شعبه ورکول کیږي .

۱۰ – دغه مدرسې به په عامه ځایونو کې لکه مسجدونه یا د کلي په بل عام ځای کې وي.

۱۱ – د درس وخت به اقلاً (۲) ساعته وي د شروع او ختم وختونه به معلوم وي .

نوټ : د يادونې وړ ده چې د سوېړن د مؤسسې دغه پروګرام تـه د تعليم او تربيې او عالي تحصيلاتو کميسيون په غونـډه کـې چې پـه ۵-۷ د ربيع الاول ۱۴۳۶هــ ق دائره شوې وه د ځينو ضرورتونو پـر بنيـاد د ځينو شرائطو لاندې اصولا اجازه ورکـول شـوه تـر څو مسؤلين د دغو شرائطو په نظر کې نيولو سره دغه پروګرام تعقيب کـړي او سـمه ګټـه ورځنې واخيستل شي.

وروسته له دې څخه چې کله مو د ټولو ولسواليو د مديرانو او تعليمي مسؤلينو څخه معلومات تر لاسه کړل نو داسې پروګـرام مـو ترتيب کړ چې په هره ولسوالۍ کې په لانـدې توګه مجالس ترتيب شي تر څو له يـوې خـوا مربوطه اړخونو ته لازمې لارښـونې وشي او له بلې خوا له دوی څخه ګټورې مشـورې تـر لاسه شي :

- د هرې ولسوالۍ د ديني مدارسو او مرکزونو داستاذانو او مهتممينو سره .
- د هـرې ولسـوالۍ د ښـوونځيو او عصري ادارو د استاذانو او مسؤلينو سره .
- د هــرې ولســوالۍ د مخــورو او مشرانو سره .
- د هرې ولسوالۍ د نظامي مسؤلينو سره .

بايد و ويل شي چې د منطقې امنيتـي وضعيت ته پـه کتنـې سره دغـه مجـالس پـه مختلفو وختونو کې د فرصت سره سم کله پـه يوه ولسوالۍ او کلـه پـه بلـه ولسوالۍ کـې تـرسره کېـدل ځکـه چـې دا وخـت د دښـمن انکشافي او بې پيلوټه طيارې (الـوتکې) پـه پرله پسـې تـو ګـه ګرزيـدلې او هيڅکلـه بـه فضاء خالي نه وه خو بيا هم د الله جل جلالـه په فضل سره مونږ خپل پروګرامونه په برياليۍ توګه پرمخ بيول او په لاندې توګه مونږ خپل پروګرام پيل کړ:

## دوهم مجلس (د رمضان المبارک ۱۹\۱۴۳۶هق)

په دغه نيټه دجلګې ولسوالۍ د بابـک د (نور المدارس) مدرسې په مسـجد کـې مـو مجلس ترتيب کړ چې د ولسـوالۍ د لانـدنې برخې د ښوونځيو مـديران او مسـؤلين مـو را غوښـتي وو پـه دې مجلس کـې مـو لانـدې موضوعات وڅېړل :

- د اسلامي امارت تعليمـي پاليسي-چې د تعليم په هره برخه کـې يـې لـري ورتـه تشريح شوه .
- بايد د شـاګردانو سـالمې روزنـې او عقيدوي او اخلاقي اړخونو ته ځانګړې توجه او پاملرنه وشي .
- په ښوونځيو کې بااستعداده علمـي اومسلکي استاذان او هم د عقيدې او اخلاقو په لحاظ وړ اشخاص مقرر شي .
- دينـي مضـامينو لکـه قـرآن کـريم ، تجويد ، سيرة النّبي صـلی الله عليـه وسـلم او دينياتو ته پوره پاملرنه وشي ، چې مهـالويش او نتائجو ته يې هم پوره اهتمام وشي .
- په ديني مضامينو کې د کميسـيون د اصـولو او هـداياتو سره سـم د مسـابقو او سياليو ترتيبول .
- اداري او مـالي فسـاد ختمـول او مخنيوی يې کول .
- د اسـتاذانو د حـاضرۍ بايـد پـوره مراقبـت وشي او د اسـتحقاق فورمـه د هغـو سره سمه جوړه شي .

په پـای کـې د هغـوی لخـوا د اسلامي امارت د دې پيرزوينې څخـه مننـه وشـوه او پـه ډېـره خوشـحالۍ يـې زمـونږ د ورتـګ استقباليه و ويلـه او د دې ټولـو هـداياتو د عملي کولـو وعـده يـې وکړه او اطمنـان يـې راکړ چې دا ټولې لارښوونې زمونږ مشـترک اهداف دي اوس هم تـر ډېـره حـده عمـلي دي مـونږ بـه بيـا هـم نـور زيـار وباسـو چـې پـه تعليمي ادارو کې لا ښه اصلاحات رامنځتـه شي .

## دريم مجلس (د رمضان المبارک ۲۰\۱۴۳۶هق)

په دغه نيټه مجلس د جلګـې د لانـدنې برخې د دېني مدارسو داستاذانو اومهتممينـو څخه تشکيل شو په دې مجلس کـې د دېنـي مدارسو د نظم او بهبود په اړه خبرې وشـوې چې زمونږ لخـوا لانـدې هـدايات د اسـلامي امــارت د تعليمــي کميســيون د اصــولو پــه رڼاکې ورته توضيح شول :

- دينـي مـدارس بـه د تعليمـي کـال پابندي کوي چې د شوال المکرم پـه مياشت کې پيل او د رجب المرجب په مياشت کـې بـه رخصتي ورکول کيږي .
- هر ه مدرسه به ورځنی مهال ويـش لري چې د سهار لـه لمانځـه څخـه شروع او د شپې د استراحت تر وخته پـورې بـه د درس ،

مطالعې ، تکرار ،لمانځه ، ډوډۍ او تفریح وختونه معلوم وي او د مدرسې د ناظمینو لخوا به یې مراقبت کیږي.

• هره مدرسه به درجې د نصاب له مخې عملي کوي او کومو مدارسو کې چې نصاب او درجې عملي ندي سږ کال خو به له ابتدائي درجو څخه تر دوو (۲) درجو پورې حتماً نصاب عملي کوي .

تر دې زیات چې څومره د مدرسې په توان کې وي باید درجې د نصاب له مخې عملي کړي.

⊠ هره مدرسه به د دیني مدارسو د لائحې سره سم په ټول تعلیمي کال کې درې امتحانونه اخلي چې درې میاشتني ، شپږمیاشتني ، او کلني امتحانونه دي البته درې میاشتنی امتحان به تحریري اوشپږ میاشتنی به تقریري پخپله د مدرسو د ادارو لخوا اخیستل کیږي اوکلنی امتحان به هم تحریري وي خو د ځینو درجو امتحان لکه دوره حدیث ، موقوفة علیها ، او متوسطې درجې امتحانونه او دغه راز د دارالحفاظونو د کامل الحفظ حافظانو امتحان به په مشترک ډول د اصولو سره سم د تعلیمي کمیسیون لخوا اخیستل کیږي .

• هره مدرسه به په هفته کې یو ځل د تقریري استعدادونو د لوړولو په منظورانجمنونه جوړوي او د استاذانو لخوا به یې نظارت او ارزیابي کیږي .

• د مدارسو د طالبانو د اخلاقي اصلاح لپاره به په هفته کې یو ځل د یوه استاذ لخوا اصلاحي بیان کیږي او باید ټول طالبان یې په اوریدلو مکلف شي .

• د هغو مدارسو څخه چې لاندې درجې پکې موجودې وي ددې درجو د طالبانو لیستونه واخیستل شي ترڅوپه کلني امتحان کې د هغوی د اشتراک لپاره ترتیب ونیول شي کوم چې د کمیسیون لخوا اخیستل کیږی :

۱. یوولسمه درجه (دوره حدیث).
۲. لسمه درجه (موقوفة علیها ).
۳. متوسطه درجه .
٤. د دارالحفاظونو کامل الحفظ طالبان .

دغه لستونه دې د کلني امتحان څخه درې میاشتې د مخه د تعلیم او تربیې او عالي تحصیلاتو کمیسیون ته وسپاري .

### څلورم مجلس ( د رمضان المبارک ۱۴۳۶\۲۱هق)

په پورتنۍ نیته مجلس د چک په ولسوالۍ کې جوړ شو چې د ټولې ولسوالۍ د ښوونځیو مدیران یا استاذان ورته رابلل شوي وو چې هغوی هم په زیات شمیر کې ګډون کړی وو او په دې مجلس کې هم د ښوونځیو په اړه تیر هدایات زمونږ لخوا ورته واورول شول تر څو د ښوونځیو مسؤلین ، مدیران او استاذان د هغو په عملي کولو کې په پوره اخلاص او ایمان دارۍ اقدام وکړي او خپل دیني ، علمي او اخلاقي مسؤلیت اداء کړي.

او بل مونږ داهم ورته وویل چې هر کله د نصاب کوم نوی کتاب ښوونځي ته ورځي باید د اداري لخوا په دقت سره وکتل شي ټول مضامین یې تر نظر تیر شي که چیرې په هغو کې کوم نواقص وي مثلا د اسلام ، عقیدې او اخلاقو خلاف کوم مضمون پکې وي باید د خپل مدیر له لارې کمیسیون ته خبر ورکړي.

وروسته په مجلس کې د نورو په نمایندګۍ څو تنو خبرې وکړې :

محترم نعمت الله فیضان د عربانو د شالي د (شیرزاد لېسي) مدیر زمونږ د ورتګ هرکلی وکړ او له تعلیمي کمیسیون څخه یې چې د دوی په مشکلاتو کې ځان شریک ګڼي مننه وکړه .

محترم عبدالصبور دسیاب د(غازی ګل احمد خان) لیسې مدیر وویل چې:

• نصاب هر وخت ز مونږ د یو مؤظف هیئت لخوا کتل کیږي .

• داسلامي امارت ټول اصول رعایت کیږي.

• د استا ذانو او شاګردانو کره وړه هر وخت تر څارنې لاندې وي .

• د سیرت مضمون چې اوس یوازې د لیسو (۱۰ ، ۱۱ ، ۱۲) صنفونو لپاره هدایت شوی که چیرې په متوسطه (۹،۸،۷) ټولګیو کې هم تدریس شي ډیر ګټور به وي .

• کمزوري استاذان به ان شاء الله نه وي ، نوي استاذان ټول د اسلامي امارت د تعلیمي کمیسیون په موافقه مقرریږي.

• نظامي مسئولین که چیرې د کومې تعلیمي اداري سره کار ولري باید د تعلیمي مسؤلینو له لارې رابطه وکړي .

جواد صاحب د (لنگر)د انسیتیوت مسئول و ویل :

- په انسیتیوت کې د مختلفو ولایتونو شاګردان موجود دي.
- ديني تعليمات ، د قرآن کريم قراءت، اخلاق او او نور دېني مضامين تدريس کيږي.
- هر استاذ په خپل ټولګي کې لس دقيقې يوازې داسلامي عقيدې درس ورکوي .
- د ۷بجو څخه تر ۹بجو پورې مو دېني کورس ورته جوړ کړی .

ددوی دغه خبرې يادښت شوې او د خدمتونو درناوی يې وشو او د مشکلاتو په اړه يې د ولايت او ولسواليو مسئولينو ته په تحريري توګه لارښوونه وشوه.

## پنځم مجلس (د رمضان المبارک ۲۵\۱۴۳۶هق)

په پورتنۍ نيته جغتو ولسوالۍ د ښوونځيو د مديرانو او مسؤلينو د ګنداقول په سېمه کې مجلس دائر شو چې هلته د ټولې ولسوالۍ مسؤلين په زيات شمير کې راغلي وو .

او په دې مجلس کې هم د ښوونځيو په اړه تير هدايات زمونږ لخوا ورته واورول شول چې دوی ټولو يې هرکلی وکړ او د عملي کولو اطمنان يې راکړ .

محترم سيد رحيم د ګنداقول د(ګربت) لېسې مدير وويل :

- مونږ داسلامي امارت د تعليمي کميسيون ټول پروګرامونه عملي کړي چې تاسو يې له نږدې کتلای شئ .
- مونږ د خپلې لېسې څخه د سپيڅلي جهاد په لار کې شهيدان هم ورکړي دي.

يو بل مدير صاحب وويل :

ځېني عوام خلک سوء استفاده کوي او ښوونځيو ته راځي او وايي چې زه د فلاني او فلاني ( د مسؤلينوله جملې څخه ) سره پيژنم .

او بل مدير صاحب وويل چې د تيلفونونو په اړه يو څه مشکلات شته ناوړه فلمونه او عکسونه پکې وي چې په ګډه يې بايد مخه ونيول شي .

د جغتو د انستيتيوت مسئول وويل :

د انستيتيوت ځينې شاګردان غيرحاضري کوي چې د تعلېمي مسئولينو په مرسته دغه ستونزه بايد ورکه شي .

او ټولو په ګډه يو پيشنهاد درلود چې په اړه يې د مناسبو اجراءتو وعده ورسره وشوه او د پورتنيو ستونزو د حل ژمنه مو ورکړه او د هغو خدمتونو چې د تعليم په ډګر کې يې تر سره کړی درناوی وشواولا نور هم تشويق شول.

## شپږم مجلس (د رمضان المبارک ۲۶\۱۴۳۶هق)

په پورتنۍ نيته مجلس د جغتو ولسوالۍ د ديني مدارسو د استاذانو او مهتممينو په وياړ ترتيب شوی ؤ او له هغوی څخه زيات شمير کسانو پکې ګډون وکړ.

دوی ته هم هغه پخواني هدايات زمونږ لخوا واورول شول چې دوی پخپلو مربوطه مدارسو کې هغه عملي کړي او خپلې مدرسې په يوه واحد نظم کې راولي وروسته ددوی لخوا سربيره پر دې چې زمونږ له غوښتنو يې هرکلی وکړ ځېنې نظريات يې هم درلودل :

مولوي اسد الله د (کلانده ) د کلي د مدرسې استاذ وويل :

که په ټوله ولسوالۍ کې دوره حديث چې اوس په متفرقه ځايونو کې ويل کيږي په يوه ځای کې وشي او ښه جيد استاذان ورته وټاکل شي ډير ښه به وي چې دغه ښه معقول پيشنهاد ؤ او مونږ ورته وويل چې تاسو استاذان او ځای مشخص کړئ مونږ به هم لازمه مرسته درڅخه ونه سپموو

## د دوی څه نور وړانديزونه دا وو:

- په ديني مدارسونظارت نور هم زيات شي او کيفيت ته يې زياته توجه وشي.
- کليوالي مدرسې په تدريجي ډول د فيس په ذريعه جوړې شي .
- د دې مد رسو لپاره نصاب چمتو او چاپ شي تر څو درسي نظام يې ښه برابرشي.
- په مدرسو کې د امتحان اهتمام وشي .
- د مدرسوطالبان د نظامي مسئولينو لخوا له ضرورت پرته مصروف نشي .
- ټول مدارس د تعلېمي کال پابندي وکړي په يو وخت پيل اوپای ومومي .

چـــې ددوی دغــه غوښـــتنې مـــو مربوطـه مسـئولینو تـه ورسـولې او د ځینـو ورسره وعـده وشـوه چـې هغـه یـا دښـتونه د راپور په پای کې راځي .

اووم مجلــس(د رمضـــان المبـــارک په۱۴۳۶\۲۸هق)

پـه پـورتنۍ نیتـه د چـک ولسـوالۍ د دیني مدارسـو د اسـتاذانو او مسـئولینو سره مجلس وشـو پـه دې کـې هـم مـونږ د دینـي مدارسو لپاره پخواني هدایات ورتـه تشریـح کړل او دوی مو د مدارسو نظم او د کیفیـت بهتر والي ته وهڅول چـې دوی هـم پـه ټولـو مواردو کې راسره موافـق وو اوپـه دې برخـه کې یې د لا ښه پرمختګ لپاره ځینې نظریات درلودل چې په لاندې ډول دي:

مولوی هزارګل داو کزار د نظام العلـوم د مدرسې استاذ وویل :

د مدارسو په نصاب کې دې دکمپیـوټر زده کړه داخله شي .

د ښوونځیو لپاره دې علماء مقرر شي او شــاګردانوته دې عقیـدوي او اخلاقـي درس ورکړي .

مولوی محمد آصف د جهـاد د مدرسـې استاذ و ویل : په لیلیه مدارسو کې په نوبـت سره یو استاذ باید د نوکریوال په توګـه حتماً موجود وي .

مولـــوي غـــلام الـــرحمان ، مولـــوي محمدشـفیق ، مولـوي حمیـدالله او مولـوي سعید وویل :

نظامي طالبان باید په مدارسـو کـې بـد نظمي جوړه نکړي .

مولـوي محمداحسـان د عـلي مسـجد دمفتـاح العلـوم د مدرسـې اسـتاذ وویـل : دعلماؤ مسئولیت زیات دی هر وخت باید کار او خدمت وکړي ، د طالبانو ذهني جوړښت او هم د سیاست په برخه کـې معلومـات اړیـن دي.

مولـوی محمـد کمـین د ممـد د شـمس العلوم د مدرسې مهـتمم وویـل : د مدرسـو د استاذانو مجلس دې په یـو معـین وخـت کـې جوړ شي او ولس ته دې دعـوت ورکـړل شي او طالبان دې ترې را جذب کړل شي.

د دوی نظریات مونږ یاد داشت کـړل او تر ډیره حده مـو مربوطـه مراجعوتـه هـدایات وکړل او ځینې مو د مشورې لپـاره لـه ځانـه سره راوړل ، مجلس ښه په کامیابۍ پـای تـه ورسیدو.

## اتـــم مجلـــس (شـــوال المكـــرم ۱۴۳۶\۵هق)

په پورتنۍ نیته د جلګې ولسـوالۍ پـه لوړه ساحه کې له غرمې مخکې مجلس دائـر شو دې مجلس ته مو د جلګې د لوړې برخـې د دینـــي مدارســـو اســـتاذان او مســـئولین راغوښتي وو پـه دې مجلـس کـې هـم مـونږ هغاغه ضروري مـادې ورتـه تشریـح کـړې او دوی هـم چـې د مدارسـو د لا ښـه نظـم او انسجام غوښتونکي وو خپل ملاحظات بیـان کړل :

مولوی زلمي صـاحب د جلګـې د مفتـاح المدارس مهتمم او د منطقې یو مخـور عـالم او جهادي شخصیت وویل:

• د مدارسـو د نصـاب پـه اړه زمـونږ مشکل دا دی چې استاذان نلـرو اواقتصـادي ستونزې شته دی .

• د کلیوالي مدرسو په اړه یـې نظـر دا ؤ چې لومړی خلک وپوهول شي بیـا مشـوره پرې وشي .

مولوي صـدرالدین د جلګـې ولسـوالۍ مُلکي مسئول وویل :

دکلیوالي مدرسو په اړه لومړی د خلکو پوهول او ذهنیت جوړول ضروري دي.

مولوی محمد نعیم وویـل پـه پوهنځیـو کې ځینـې اسـتاذان دخپـل ضرورت سره سـم شـــاګردانو تـــه وخـــت تغییـــر کـــوي اویا غیرحاضري کوي نو د پوهنځیـو نظـارت باید زیات شي .

د دوی د غوښـتنې پـه اړه هـم تصـمیم ونیول شو ، د کلیوالي مدرسو او فیس په اړه مو دسپین ږیرو او مخورو سره خبره شریکـه کـړه او د ښـوونځیو پـه اړه مـو د ولسـوالۍ مدیر ته هدایت وکـړ تـر څـو نظـارت زیـات کړي

## نهـــم مجلـــس (شـــوال المكـــرم ۱۴۳۶\۵هق)

په دغه ورځ مو لـه غرمـې وروسـته د جلګې ولسوالۍ مخـور او مشران پـه درې بجـو راغوښـتي وو او همداسـې مـو ددې سـاحې مربـوط د ښـوونځیو مـدیران او مسئولین را بللي وو چې ښه په زیـات شـمیر

کې راغلي وو نو څرنګه چې دا د منطقې د سپين ږيرو او مشرانو او هم د ښوونځيو د مسئولينو مشترک مجلس ؤ نو مونږ له يوې خوا د ښوونځيو د مسئولينو لپاره هماغه غوښتنې او هدايات چې په نورو مجالسو کې مو واورول دوی ته هم پوره توضيح کړل چې د ټول مجلس د تائيد وړ وګرزيدل او د اسلامې امارت د تعليم او تربيې کميسيون د دې اسلامي او جهادي هلو ځلو څخه يې مننه وکړه وروسته د منطقې دسپين ږيرو او مخورو سره مو لاندې موضوعات مطرح کړل:

• علم او پوهه چې د يوې ټولنې بنسټيز ضرورت دی نو مونږ او تاسو ټول په دې مکلف يو چې خپل اولادونه تعليمي ادارو ته وسپارو.

• دتعليمي ادارو په څانګړې توګه د ښونځيو بايد تعقيب اوڅارنه وشي ،استاذ اونصاب او نور مربوط امور د اسلامې اصولو او هداياتو سره برابر وي او غير اسلامې نصابونو او استاذانو ته اجازه ورنکړل شي چې زمونږ اولادونه ګمراه او بې لارې کړي.

• خپل اولادونه هم تر څارنې لاندې وساتئ او د استاذانو مسئوليت دی چې د اسلامې او اخلاقي تعليماتو زمينه ورته برابره کړي.

• دکليوالي مدرسو په اړه په تفصيل سره خبره وشوه تر څو دغه پروګرام د شاګردانو پر سر د فيس په ورکولو سره پرمخ ولاړشي ځکه نن صبا ټول تعليمات د فيس له لارې سر ته رسيږي نوکليوالي مدرسې چې زمونږ د تعليم بنياد دی بايد په ښه کميت او کيفيت سره جوړې شي او مونږ او تاسې ورسره همکاري او مرسته وکړو.

• د دښمن د تبليغاتو ښکار نه شو ، د تعليم په برخه کې دښمن کوښښ کوي تر څو د تبليغاتو له لارې اسلامي امارت د تعليم ضد معرفي کړي چې ګويا هغوی د تعليم په ځانګړې توګه د عصري تعليم مخالف دي خو لکه چې تاسو يې د سر په سترګو وينئ خبره بالکل برعکس ده ځکه دا د هغوی تالي څښې دي چې زمونږ تعليمي بنسټونه لکه مساجد ، مدرسې او مکاتب نړوي استاذان او شاګردان په شهادت رسوي اوس هم زمونږ تعليمي شرائط د دوی لخوا تهديديږي نو د علم او پوهې دښمنان همدوی دي.

• اسلامي امارت د اسلام د اصولو پر بنياد علم ، تعليم او تربيې ته تر هرڅه زيات پام اړولی او په دې اړه زيات کوښښ روان دی چې ستاسو مرستې ته هم پکې زيات ضرورت دی.

له دې فرصت څخه په ګټې اخيستلو سره ځينې موضوعات چې د وخت ضرورت ؤ هم مو له دوی سره مطرح کړل چې هغه په لاندې ډول وو :

• ګوډاګی دولت کوښښ کوي تر څو زمونږ ملت يوځل بيا د قومي اوخپل منځي اختلافاتو ښکار کړي او د اربکيانو په نامه قومي ملېشه جوړه کړي او دغه ملت يو د بل په مقابل کې وجنګوي دې ټکي ته بايد متوجه واوسو تر څو د هغوی دا ډول دښمنانه پلانونه شنډ او دلته عملي نشي لکه څرنګه چې تر اوسه پورې دلته دا کار نه دی شوی په راتلونکې کې هم بايد د دې خطرناک پلان مخه ونيول شي او که چيرې يو څوک په دې تکل کې وي هغه پوه کړي د اسلامي امارت د پراخ نيت او د مهربانۍ د پالېسۍ لمخې يې دعوت کړي او ډاډ ورکړي تر څو د دښمنانو په وعدو ونه غوليږي.

• د اسلامي امارت د مجاهدينو درناوی او مرسته وکړئ هغوی به تاسوته امنيت او عزت در په برخه کړي د خپل سر په قرباني کولو يې اسلامي ماحول درته رامينځ ته کړی دا هم ستاسو په مرسته شوی د دوی په ځينو اشتباهاتو مه مأيوسه کيږئ بلکه ورسره مرسته وکړئ او خپلو اشتباهاتو ته يې متوجه کړئ د مسئولينو سره خپله رابطه وساتئ تر څو د امن اسلامي فضاء رامنځ ته شي.

• په پای کې له دې سره سره چې زمونږ غوښتنې يې ومنلې او د هغو تائيد يې وکړ چې دا ټولې زمونږ غوښتنې دي د معارف په اړه يې د اسلامي امارت له هلو ځلو څخه ډيره خوښي څرګنده کړه وعده يې وکړه او دا يې خپل مسئوليت وباله.

د ويلو وړ ده چې د جلګې ولسوالۍ خلکو او مشرانو د ۱۳۹۴ لمريزکال د غوايي (ثور) په پنځمه نيټه د (حربکيانو) يعنې اربکيانو په اړه يو پريکړه ليک تصويب کړی ؤ او په دې يې فيصله کړې وه چې :

• هرڅوک چې جهاد کوي هغه به د اسلامي امارت په مربوطو دلګيوکې ځان شاملوي.

• له اسلامي امارت څخه پرته بل سياسي جريان قوم ته د منلو وړ نه دی .

• لکه پخوا چې هم فيصله شوې وه يوځل بيا دهغې په تائيد فيصله کوو چې هر هغه څوک چې په اربکيانو کې شامل شو کور به يې سوځول کيږي او خپلوان به يې د شکايت حق نه لري .

د همدغې فيصلې يوه کاپي مونږ ته هم د يو قومي مشر لخوا راکول شوه او په پای کې د مسئولينو په نمايندګۍ حاجي اقامحمد د جلګې دللندر دليسې مدير زمونږ د ورتګ استقبال وکړ او زياته يې کړه چې مونږ تر خپل توان پورې کوښښ کړی او بيا يې هم کوو تر څو داسلامي امارت د تعليم او تربيې کميسيون ټول هدايات عملي کړو، په نصاب کې البته مشکلات شته کوښښ کوو چې هغه هم اصلاح کړو او د کليوالي مدرسو په اړه سپين ږيرو ، مشرانو، د منطقې علماؤ او مسئولينو په ګډه وعده وکړه چې په دې موضوع به مونږ خپل مجلس جوړ کړو او په اړه به يې تصميم ونيسو.

## لسم مجلس (شوال المکرم ۹\۱۴۳۶هق)

په دغه نيته مو د چک ولسوالۍ مشران ، سپين ږيري او مخور کسان راغوښتي وو چې د ولسوالۍ له هر ګوټ او کلي څخه زيات شمير يې را غلي وو په دې مجلس کې مو هم هغه غوښتنې او مشورې مطرح کړې کوم چې مخکې مو د جلګې ولسوالۍ د مشرانو په مجلس کې مطرح کړې وې او د تعليم او تربيې په اړه مو له دوی سره خبرې وکړې په داسې حال کې چې د منطقې تعليمي او نظامي مسئولين هم موجود وو له دوی سره هم ځينې نيکې مشورې وې چې په مجلس کې پرې خبرې وشوې او د اسلامي امارت د تعليمي پاليسيو څخه يې خوښي څرګنده کړه او د پوره عملي کولو وعده يې وکړه .

## يوولسم مجلس ( شوال المکرم ۱۵\۱۴۳۶هق )

په دغه نيته مو د سيد آباد په ولسوالۍ کې له غرمې مخکې ددې ولسوالۍ مشران ، سپين ږيري، مخور کسان، علماء کرام او د ديني مدارسو استاذان او مهتممين راغوښتي وو چې په زيات شمير کې دغه کسان راغلي وو که هر څومره دغه ولسوالي اوساحه د ګوډاګي دولت او دښمن تر امنيتي تهديد لاندې ده خو بياهم د دوی په دومره غټه کچه راتګ د دوی له علم او جهاد سره علاقه او مينه څرګندوي نوځرنګه چې دغه مجلس ته هم د منطقې سپين ږيري، مخور کسان اوهم علماء کرام او د ديني مدارسو استاذان او مهتممين راغلي وو نو هغه ټول موضوعات کوم چې د مشرانو او سپين ږيروسره يې تعلق درلود او هغه موضوعات چې د ديني مدارسو سره اړوند وو په دې مجلس کې مو مطرح او توضيح کړل ( البته موضوعات مخکې ذکر شول) وروسته په داسې حال کې چې زمونږ د خبرو او غوښتنو يې هرکلی وکړ دوی پخپله هم ځينې مشخص وړانديزونه څرګندکړل چې بايد توجه ورته وشي لکه چې مشهور سپين ږيري عالم قاضي بابا صاحب وويل:

عام خلک بايد تشويق او وهڅول شي ترڅو خپل اولادونه ديني مدارسوته واستوي چې په مدرسو کې طالبان پيداشي او تعليمي کيفيت ته يې توجه وشي.

مولوي سيد رحيم الله اغاصاحب وويل:

د مساجدو درسونو (کليوالي مدرسو) ته بايد زياته توجه وشي د دې کار لپاره دې يو جامع او په زړه پورې پروګرام ترتيب شي .

مولوي نظام الدين صاحب وويل:

علماء کرام دې سره مشوره وکړي يوه نقشه دې جوړه کړي او بيا دې له خلکو سره شريکه کړي .

مولوي محمد زاهد اغاصاحب وويل:

په مدارسو کې طالبان ډير دي خو تعليمي کيفيت کمزوری دی ، حافظان هم کمزوري دي او اخلاقو ته هم بايد ډيره توجه وشي .

ددوی مشورې هم مونږ راسره واخيستې ترڅو تعليمي موضوعات له تعليمي مسئولينو سره او نظامي مشکلات له نظامي مسئولينو سره وڅيړو په پای کې علماء کرامو وعده وکړه چې بيا به سره يوځای کيږي او د کليوالي مدرسو، دارالحفاظونو او غټو مدرسو د کيفيت د ښه والي په اړه به ګډ تصميم نيسي .

**دولسم مجلس (شوال المکرم ۱۵\۱۴۳۶هق)**

په دغه ورځ مو له غرمې وروسته د سیدآباد په ولسوالۍ کې د دې ولسوالۍ د ښوونځیو له مدیرانو او مسئولینو سره مجلس درلود چې د ټولې ولسوالۍ د ښوونځیو مسئولین مجلس ته راغلي وو.

دې مجلس ته مو هم د ښوونځیو په اړه هغه هدایات او ضروري موضوعات واورول او دوی موتشویق او وهڅول تر څودغه هدایات پخپلو ښوونځیو کې عملي او خپلې ادارې د یو اسلامي ماحول په چوکاټ کې تنظیم کړي چې دوي هم پوره ډاډ راکړ او ژمنه یې وکړه او دا یې د ځان مسئولیت وباله او د اسلامي امارت د تعلیمي پالیسیو څخه یې خوښي څرګنده کړه.

یوه ستونزه په دې مجلس کې وڅیړل شوه هغه دا چې ؛ په ځینو ادارو کې استاذان (معلّمین) غیر حاضري کوي خو د ښوونځي د ادارې لخوا ورسره سازش کیږي او یا د استاذانو په مینځ کې د ځینوسره ښه امتیازي سلوک کیږي چې په نتیجه کې بې اعتمادي رامنځ ته کیږي په دې اړه مونږ دوی ته اطمنان ورکړ چې د دې لپاره به مونږ معیار ورته ټاکو او د خپلو مسئولینو له لارې به متحد هدایت صادروو تر څو په دې اړه له توپیر او تبعیض پرته په ټولو ادارو کې یو ډول چلند وشي او د حل لارې به یې تاسوته خبر درکول کیږي .

**دیارلسم مجلس (شوال المکرم ۱۸\۱۴۳۶هق)**

په دغه نیټه د چك په ولسوالۍ کې د مرحوم عالیقدر امیرالمؤمنین رحمه الله دفاتحې او د نوي قیادت سره د بیعت په مناسبت یوه لویه جلسه جوړه شوه چې په دې جلسه کې هم مونږ فعال ګډون درلود ځکه چې په دې وخت کې د ولایت والي اومرستیال موجود نه وو جلسې ته موهم د وخت د ضرورت په بنیاد خبرې وکړې مثلاً :

د وحدت او یو والي په هکله ، د دښمن د تبلیغاتو په اړه ، د جهاد او مجاهدینو د اصلاح او له ملت سره د ښه سلوک په باب او همدا راز د معارف په اړوند مو خبره ورته وکړه او د بیعت سلسله مو د ولایتي کمیسیون د مسئول مولوي سیدحضرت الله آغا صاحب په ذریعه ترسره کړه ، جلسه په ډیره کامیابۍ او اطمینان د ورځې په یوه نیمه بجه پای ته ورسیده .

**څوارلسم مجلس (شوال المکرم ۳۰\۱۴۳۶هق)**

په دغه نیټه مو د جغتو په ولسوالۍ کې مجلس جوړ کړ او د هغې ولسوالۍ سپین ږیري او مشران مو راغوښتي وو په دې مجلس کې هم هغه موضوعات چې مخکې ذکر شول او تر دوی پورې یې اړه درلوده مونږ ورته تشریح کړل د تعلیم او تربیې خواته مو تشویق کړل هغوی هم خوښ شول او د بشپړې همکارۍ وعده یې وکړه .

**۱۵- د نظامي مسئولینو سره لیدنې کتنې :**

د تیرو مجالسو په لړ کې ځینې داسې موضوعات مطرح شول چې تر نظامي مسئولینو یې ارتباط درلود نو مونږ دا ډول موضوعات په جلاجلا توګه د هرې ولسوالۍ د نظامي مسئولینو سره شریك کړل اوهم مو د ولایت په سطح په ۲۴ د رمضان المبارك د ولایتي کمیسیون د مسئول مولوي حضرت الله اغا سره شریك کړل د هغوی همکاري مو په دې لړ کې راجلب کړه چې دوی هم پوره وعده راسره وکړه.

**ځینې هغه موضوعات په لاندې ډول وو :**

• د کومې تعلیمي ادارې له استاذ یا شاګرد سره که د جلب ضرورت پیدا کیږي باید د ولسوالۍ دتعلیمي مسئول او مربوطه ادارې په سلسله راجلب او هغوی په جریان کې واچول شي د هغوی د استحضارۍ پرته باید څوک په مسلح ډول تعلیمي ادارې ته ورنه شي ترڅو دوهرې اونفرت سبب ونه ګرزي.

• په عمومي ډول تعلیمي ادارو ته او خصوصاً مدارسوته د مسلحو ګروپونو تګ او راتګ باید بند شي ځکه د هغوی په درسي نظام او ذهنونو منفي اثر اچوي.

دغه پورته ملاحظات بیا مونږ د ولایت د تعلیمي مسئول لخوا د ولایت د والي په عنوان دیوه مکتوب په ذریعه هم دوي ته ورکړل.

۱۶- په ښوونځیو کې د یوشمیر علمي ، مسلکي او اخلاقي کمزورتیاوو له کبله د مدیرانو او استاذانو په سطح ځینې تبدیلۍ یا انفکاك صورت ونیو تر څو په دې ادارو کې اصلاح رامینځ ته شي.

۱۷- د چک په ولسوالۍ کې په ځينو مدارسو او ښوونځيو کې متفرق ديني او عصري کتابونه موجود ول چې مونږ د ولايت د تعليمي مسئول مولوي عبيدالله صاحب له لارې د ولسوالۍ مدير ته هدايت وکړ ترڅو دا کتابونه سره راټول او برابر کړي او د يوه عام کتابتون په توګه يې په يو مصئون ځای کې ځای پر ځای کړي ترڅو له يوې خوا ضا ئع نشي او له بلې خوا د مطالعې او درس ګټه ترې واخستل شي .

۱۸- د ميدان وردګ ولايت د ټولو تعليمي ادارو په ځانګړې ډول په ښوونځيو کې د اصلاحاتو د راوستلو په موخه لکه څنګه چې د ولايت په تعليمي مجلس ۱۳ د رمضان المبارک کې پريکړه شوې وه د دې ولايت دتعليمي مرستيال مولوي عبدالرحيم په مشرۍ يو هيئت چې په ترکيب کې به يې په هره ولسوالۍ کې ديني عالمان او د عصري علومو مسلکي کسان ورسره وي وټاکل شو ترڅو سمدلاسه کارپيل کړي او په مشخص ډول په لاندې مواردو کې د تعليمي ادارو ارزيابي وکړي:

• ټولو تعليمي ادارو (مدارسواو ښوونځيو) ته د ورکړ شوو هداياتو تعقيب او نظارت.

• د تعليمي ادارو د شاګردانو دعلمي او اخلاقي صلاحيتونو ارزونه.

• د ښوونځيو د استاذانو علمي ، مسلکي ، عقيدوي اواخلاقی ارزونه.

• د تعليمي ادارو اداري نظم او دتعليم او تربيې کميسيون د ورکړو اصولو د رعايت ارزونه.

نوموړی هيئت به خپل راپور بشپړوي او د خپل ولايت د تعليمي رياست له لارې به يې مرکزي کميسيون ته سپاري.

۱۹- زمونږ د ټولوليدنو کتنو، مجالسو اواجراءاتو په نتيجه کې داصلاحاتو او ستونزو د حل او د ولايت د تعليمي کيفيت د ښه والي په منظور يو ياد داشت د ولايت تعليمي مسئول مولوي عبيدالله صاحب ته وسپارل شو تر څو په دغو مواردو کې عملي اقدام وکړي چې دغه ياد داشت په لاندې ډول دی :

**يادښت** : د ميدان وردګو ولايت دتعليم اوتربيې محترم مسئول ته السلام عليکم ورحمة الله وبرکاته

لاندې څو ټکي زمونږ د کتنو او ليدنو په نتيجه کې د دې ولايت په مربوطه ولسواليو کې تاسو ته وړاندې کېږي تر څو د ولسواليو تعليمي مسئولينو ته هدايت وکړئ چې په عملي کولو کې يې جدي اقدام وکړي .

## الف : د ديني مدارسو په اړه :

۱ – د مخکني هدايت سره سم ټولې ديني مدرسې بايد د تعليمي کال پابندي وکړي چې دشوال المکرم په مياشت کې شروع اودرجب المرجب په مياشت کې ختم شي .

۲ - هره مدرسه بايد ورځنی مهال ويش ولري چې د سهار له لمانځه څخه شروع او د شپې د استراحت تر وخت پورې د درس ، مطالعې ، تکرار ، لمانځه ، ډوډۍ او تفريح وختونه پکې معلوم وي او د مدرسو ناظمين او استاذان يې تعقيب او نظارت وکړي .

۳ - هره مدرسه به درجې د نصاب له مخې عملي کوي او کومو مدارسو کې چې نصاب او درجې عملي نه دي سږ کال خو به له ابتدائي درجو څخه تر دوو (۲) درجو پورې حتماً نصاب عملي کوي تر دې زيات چې څومره د مدرسې په توان کې وي بايد درجې د نصاب له مخې عملي کړي.

٤ - ټولې ديني مدرسې د ديني مدارسو د لائحې سره سم به په ټول تعليمي کال کې (۳) امتحانونه اخلي چې درې مياشتني، شپږ مياشتني اوکلني امتحانونه دي درې مياشنی امتحان به تحريري ، شپږ مياشتنی به تقريري پخپله د مدارسو د استاذانو لخوا اخستل کېږي او کلنی امتحان به هم په تحريري توګه اخيستل کېږي خو د ځينو درجو لکه دوره حديث ، درجه موقوفة عليها ، متوسطه درجه او د کامل الحفظ حفاظو امتحانونه به پخپله د کميسيون لخوا به په متحد او مشترک ډول اخيستل کېږي .

۵ - هره مدرسه به په هفته کې يو ځل د تقريري استعداد د لوړولو په منظور انجمنونه جوړوي او د استاذانو لخوا به يې نظارت او ارزيابي کېږي .

٦ - د مدارسو د طالبانو د اخلاقي اصلاح لپاره په هفته کې يو ځل بايد د يوه

استاذ لخوا اصلاحي بيان وشي او ټول طالبان يې په اوريدلو مکلف شي .

۷ - د دينـي مدارسو څخه د لاندې درجو د طالبانو ليستونه بايد واخيستل شي تر څو د کلني مشترک امتحان لپاره د دې درجو لپاره انتظام برابر شي کوم چې د کميسيون لخوا اخيستل کيږي .

۱- يوولسمه درجه ( دوره حديث).

۲- لسمه درجه ( موقوفة عليها).

۳- متوسطه درجه.

٤- د دارالحفاظونو د کامل الحفظ حافظانو.

دغه ليستونه دې د کلني امتحان د وخت څخه درې مياشتې د مخه د تعليم او تربيې او عالي تحصيلاتو کميسيون ته وسپارل شي .

**ب : د ښوونځيو په اړه :**

۱ - د ټولو ښوونځيو د استاذانو د علمي سويې ، عقيدوي او اخلاقي اړخونو د ارزيابي او په ښوونځيو کې د اسلامي امارت د اصولو د تطبيق او اداري اصولو د کتنې ، د شاګردانو د علمي او اخلاقي ارزونې لپاره دې يو هيئت چې په راس کې يې ددې ولايت د معارف مرستيال محترم مولوي عبدالرحيم صاحب قرار لري او بيا په هره ولسوالۍ کې ځينې مسلکي کسان او يو ديني عالم ورسره وي و ټاکل شي تر څو د ښوونځيو پوره بر رسي وکړي .

۲ - په ښوونځيو کې دې د ديني مضامينو اهتمام زيات وي لکه د قرآنکريم په تجويد سره زده کړه ، تعليم الاسلام او سيرة النبي صلى الله عليه وسلم ، دغه مضامين دې د تعليمي پروګرام مطابق په کافي ساعتونو او هم په مناسبو وختونو کې تدريس شي .

۳ - د سيرة النبي صلى الله عليه وسلم په موضوع باندې د سږ کال لپاره هم بايد ليسو د شاګردانو په منځ کې مسابقې ترتيب شي .

٤ - د کليوالي مدارسو په جوړلو کې دې عملاً اقدام وشي ، د ولس له مخورو، مشرانو ، جهادي مسئولينوسره دې مشورې جاري وساتل شي او هغوی دې تشويق شي تر څو د امکاناتو مطابق د مناسب فيس له لارې دغه لړۍ جاري شي .

۵ - د مکاتبو د استاذانو د حاضرۍ مراقبت دې پخپله د مکاتبو د مديرانو لخوا وشي او د ولسوالۍ د مديرانو لخوا يې هم نظارت وشي کوم استاذان چې له ضرورت پرته غير حاضر وي حاضري يې قيد شي او د استحقاق راپور د حاضرۍ مطابق جوړ شي د تخلف په صورت کې مسئوليت د مکتب د مديرانو په غاړه دی .

**يادونه !**

مولوي عبدالرحيم د ولايت تعليمي مرستيال چې ښه فعال سړی ؤ او د نرخ د ولسوالۍ دی ، هميشه هلته موجود وي د ميدان د مرکز ساحه ، نرخ ولسوالۍ او جلريز ولسوالۍ تعليمي امور يې تر نظارت لاندې دي نوموړي زمونږ سره په اکثرو مجالسو کې برخه درلوده او دغه پروګرامونه يې هلته ورسول .

۲۰- کله چې زمونږ وروستی مجلس په ۳۰شوال ۱۴۳٦هـ ق دجغتو په ولسوالۍ کې تر سره شو او د کار نتائج مو هم خپلو مربوطه مراجعو ته ورسول په ۱ ذيقعدة الحرام ۱۴۳٦ هـ ق مونږ له ميدان وردګ ولايت څخه د غزني ولايت ته راغلو او په همدې ورځ مو د غزني ولايت د تعليم او تربيې مسئول مولوي عبدالرشيد صاحب سره پيدا کړل شپه مو يوځای سره وکړه ددې ولايت تعليمي حالات مو ترې وپوښتل هغه وويل چې نور عمومي وضعيت خو برابر دی په ټولو ولسواليو زه وګرزيدم خو يوڅو ستونزې يې درلودې چې هغه ياد داشت مو ورڅخه واخيست او وعده مو ورسره وکړه چې دا به دتعليمي کميسيون مشرتابه ته وړاندې کوو.

۲۱- په ۳ذيقعدة الحرام ۱۴۳٦ هـ ق مو دحاجي فاروق (حقاني صاحب ) سره دغزني په مربوطا تو کې وليدل هغه ته مو د سفر جريان وړاندې کړ چې پرې خوښ شو.

او په ۴ د ذيقعدة الحرام ۱۴۳٦ هـ ق مو خپل سفر په خير او عافيت سره پای ته ورساوو. (ولله الحمد والمنة)

داوو زمونږ د سفر جريان چې له ۲۷ شعبان ۱۴۳٦ هـ ق څخه نيولې بيا تر۴ ذيقعدة الحرام ۱۴۳٦ هـ ق پورې يې دوام درلود.

دتعليم او تربيې او عالي تحصيلاتو دکميسيون ټاکلی هيئت

والسلام

# اهل سنت والجماعت

## دڅلورګونوامامانو تقلید اودمذاهبو وسعت!

داهل سنت والجماعت دڅېړنيزې لړۍ په تیره لسمه برخه کې مودمتکلمینو ددووامامانو(امام ابومنصور ماتریدي رح او امام ابوالحسن اشعري رح)دمعتقداتو او په مجموع کې داهل سنت والجماعت دځینوعقایدوپه اړه لنډه رڼاواچوله او دامو هم جوته کړه، چې څنګه حنفي مقلددامام ابومنصور ماتریدي رح پیرو کیدای شي، نوکه همدا حنفي مقلد چیرته دامام ابوالحسن اشعري پیرو شي، نو پدې سره نه له حنفیت څخه وځي او نه دتقلید له دائرې څخه ،لکه (قاضي ابوالحسن بن ابي جعفرسمناني) او دده پلار،چې په فروعي مسایلو کې احناف، خوپه اصولو کې بیا اشاعره وواوبیا په اشاعره وو کې ،دغلو درجه کې وو،تاریخ پوه ابن اثیر جزري /۴۶۶هـ په (واقعات )کې لیکي :چې دوئ دواړه حنفي اشعري وو،یا لکه د(شرح عقاید نسفي )متن چې دحنفي عالم علامه نسفي دی او شرح یې د (علامه تفتازاني شافعي )ده ،چې مدرسو کې دا دواړه (اشاعره او ماتریدیه )یوشان تدریس کیږي او احناف دې دواړوته په درنده سترګه ګوري .

علامه ډاکترخالدخالد محمودپه( المهند علی المفند )باندې په خپله بې بیلګې مقدمه کې کاږي، چې که چیرته ددیوبند علماء خپل ځانونه دامام ابوحنیفه رح مقلدین بولي، نو هیڅکله داسې هم نده ،چې دنورو څلور ګونومذاهبو تقلید او پیروي ته څوک وحشت یا شرعي قباحت ووایې ،(خدای ج مکړه )که چیرته حنفیت کې کوم قباحت وی، نو نن به دسعودي عرب مشائخو(عقیده طحاویه)پخپل تعلیمي نصاب کې نه شاملولای ،او دامام طحاوي رح /۳۲۹هـ /حنفیت هغه خبره ده، چې له هیچانه پټه نده .

البته داخبره هم دیادولو وړ ده، چې کله په کتاب او سنت کې کومه مسئله په دلالت کې څرګنده او قطعي نوي ،نو دکوم مجتهدتقلید هلته کیږي ،خود کتاب الله او سنة الرسول صلی الله علیه وسلم دقطعیاتو خلاف څوک نشي کولای او نه پکې دچا خبره اوریدل کیدای شي ،کله چې دآیت یا حدیث په معنی کې دسلفو اختلاف وي، نو شک نشته، چې دکوم امام یا مجتهد رهنمایي او اجتهاد باندې یې حل کیدل شونتیا لري ،علامه خالدمحمودپه خپله دې مقدمه کې لیکي چې :شیخ سلیمان بن سحیم په شیخ محمد بن عبدالوهاب باندې دا الزام لګاوه، چې ګوندې دا دائمه اربعه وو دتقلید خلاف دی او دمذاهبو وسعت دامت لپاره رحمت نه بولي، پدې تردیدکې محمد بن عبدالوهاب داسې لیکي چې :ان الرجل افتری علی امورلم اقلها ولم یأت اکثرها علی ما یأبی (فمنها )قوله انی مبطل المذاهب الاربعة وانی اقول ان الناس



من ستمأة سنة ليسوا على شئ وانى ادعى الاجتهاد وانى خارج عن التقليد وانى اقول ان اختلاف العلماء نقمة وانى اكفر من توسل بالصالحين /(مؤلفات الشيخ محمدبن عبدالوهاب جلد ١١ ص٢٤ مطبعةالرياض) ژ:دې شخص پرمابانـدې دډيرو خبرو افتراء کړي ،چې هغه مانـدې کړي اونه پرما باندې ددې اکثرو مسؤليت راجع کيږي ،يوه خبره پدې کې داده ،چې گوندې ما دفقهې کتابونو بانـدې دبطلان فيصله کړي(دوئ داخبره غلطه کړي)،ياداچې ماويلې چې گوندې له شپږسوه کالو راهيسې خلک پـه حـق بانـدې نـدي ،ياداچې گوندې زه داجتهاد دمرتبې مدعي يم ،يا داچې گوندې زه تقليدنه کوم ،ياداچې گوندې ماويلې چې پـه فروعـې مسايلو کې دمجتهدينواختلاف مصيبت دى اوياداچې په صالحينووسيله نيولوته زه کفروايم (داټولې خبرې ماپورې بهتان او افتراء ده).

د(المهندعلى المفند)په مقدمه کې ډاکترصيب بيا ليکي چې :دشيخ محمدبن عبدالوهاب زوى عبدالله پرخپل مسلک يوه رساله ليکلي ،چې هغه په صفا ټکوسره پکې دتقليدملاتړاو تائيد کړى ،هغه داسې ليکي :ونحن ايضاً فى الفروع على مذهب الامام احمد بن حنبل ولا ننكرعلى من قلد ائمة الاربعة دون غيرهم لعدم ضبط مذاهب الغير.........ونجبرهم على تقليد احدالائمة الاربعة ولانستحق مرتبة الاجتهادوما اهدمنايدعيه (ترجمه مولينا اسماعيل غزنوي مطبع انوارالاسلام امرتسرص٦١)ژ:او مونږ په فروعاتو کې دامام احمدبن حنبل رح پيروان يواومونږ دائمه اربعه ووپر مقلدينو(دترک حديث)تنکيرنه کوو، ځکه دانور مذاهب منضبط ندي پاتي شوي ،مونږ ه په ائمه اربعه ووکې ديوه امام دتقليد پابند او مننونکي يو،دخپل ځان لپاره داجتهاد دمرتبې مدعيان نه يواونه مونږ(دنجدعلماوو)کې چا ددې دعوى کړي ده . حافظ ابن تيميه رح چې دامام احمد بن حنبل رح دمذهب مقلد دى له بده مرغه ځينې خلک يې په لوى لاس دتقليد له دايرې نه وباسي او حتى دتقليد مخالف يې بولي، پداسې حال کې چې نوموړى مقلد دى او هيڅکله له تقليده انکار نه کوي ،دې ورته نور داسې علماء شته ،چې بعضې خلک کوشش کوي چې اهل مذاهب د تقليد لـه دايـرې نـه خـارج کـړي ،ددوئ دحوالوهمدا (شيخ محمدبن عبدالوهاب )لويه مرجع وه ، دادى دنوړې په خپل عکس العمل ثابته شوه، چې هغه هم مقلد دى او هيڅکله يې دمذهب مخالفت ندى کړى نو دانور خو بې له هغې هم اهل مذهب دي او پخپله يې کله تقليد په رد کې څه ندې ويلې ....

نوربيا.......

# له امارت څخه لارې بېلونکي، څوک دي او څه غواړي؟

د عاليقدر اميرالمؤمنين ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله له وفات څخه دمخه هم ځينې کسان چې اوس په ښکاره مخالفت کوي ، په پټه مخالف ؤ.

که څه هم څوک چې ځانته دمخالفت نسبتونه کوي ، هغه ډېر کم اودګوتو په شميرخلک دي ، شاوخوا يې خالي اوتشه ده ، څه افراد اواشخاص چې ورسره يوځای شوي و دالله تعالی په نصرت دزياترو هدايت په نصيب شو اوبيرته دامارت غيبږته راوګرځيدل اوځيني يې دراګرځيدو په حال کې دي، خو بياهم ممکن يوڅوک اوياڅه خلک موجود وي چې دځينو مغرضو حلقو په اشاره دتفرق هلې ځلي کوي ، خو الله مهربان دی چې رسوا کيږي اوورکيږي به.

دغه خلک چې ځانونه اوس هم خوابدي اومخالف ځانونه بولي ، د مرحوم اميرالمؤمنين په وخت کې هم دوي دملاصاحب په سياسي درايت او د امارت د مديريت په برخه کې ځانونه قانع نه بلل. ويل به يې ، يا بايد اميرالمؤمنين په امارت کې نه وي او يو مستعد شخص د امارت زعيم تعين شي او که دی په زعامت کې پاتې کيږي ، بايد يوه باصلاحيته شوری د نوموړي پر سر وټاکل شي ، او امارت بايد د ځينو سياسي تنظيمونو په څېر يو دستور ولري.

همدغه راز دوی د قاعدة الجهاد په څېر له جهادي حرکتونو سره د اړيکو د پرېکولو هم پلويان ؤ او دا يې هم غوښتل چې اسلامي امارت بايد د کابل له طاغوتې ادارې سره مذاکرات وکړي او په نهايت کې په يو سياسي بهير بدل شي او وسلوال جهاد ته د پای ټکی کيښودل شي .

له دوی څخه ځينو يې بيا د خپلو ځانونو او خپلو قومونو لپاره په امارت کې منصبونه او امتيازات غوښتل، ځينې بيا د اسلامي امارت د دښمنانو د استخباراتو د توطئو ښکار شوي ؤ ، دغه استخباراتي سازمانونو په ډېر تکتيک دوی ته د ځينو پيښو په اړه لکه د شهيد ملا دادالله اخوند شهادت ، غلط معلومات ورکول او د اسلامي امارت تقريباً ټول قيادت يې د شهيد ملا دادالله اخوند په شهادت کې ښکېل ورته معرفي کاوه .

ځينو بيا د سمتونو لپاره منصبونه او امتيازات غوښتل ، له ځينو سره بيا دا ګيله وه چې موږ ته بايد اسلامي امارت د يوه ائتلافي تنظيم په توګه امتيازات راکړي .

ځینې یې بیا په دې خپه ؤ چې ولې موږ له خپلو دندو لرې شوو .

د عالیقدر امیرالمؤمنین رحمه الله د وفات د خبر له اعلان وروسته همدغه پټ مخالفتونه راښکاره شول ، خو دغه کسانو په خپل مخالفت یو څه نور علتونه او غوښتنې هم ور زیاتې کړې .

ځینو یې له دوی څخه له نوي زعامت سره مخالفت وکړ او د بل زعیم غوښتنه یې کوله ، ځینو یې بیا د اصلاحاتو په نامه د خپل ځان او ملګرو لپاره صلاحیتونه او منصبونه وغوښتل او ټول شرایط یې خپلو ځانونو ته د امتیاز په ورکړې او د خپلو ملګرو لپاره په منصبونو راڅرخیدلې .

له دوی څخه یو یې هم نه د تقوی په لحاظ د امارت د ټولو مشرانو په نسبت کوم خاص امتیاز لري، نه د علم ، نه د سیاسي درایت ، نه د شهرت او نه یې په نظامي ډګر کې لاسته راوړنې له چا څخه زیاتې دي .

په امارت کې ډیر د تقوی په لحاظ ممتاز ، د سیاسي بصیرت لرونکي ، په نظامي ډګر کې د ښو لاسته راوړنو ګټونکي او د نظامي امکاناتو په لحاظ پیاوړي او غښتلي کسان شته ، خو هغوی تل خپلې شخصي- ګټې د اسلامي امارت او جهاد له علیاء مصالحو څخه قربان کړېدي او ځان ته یې د امتیاز ورکولو کوشش ندی کړی .

د حیرانتیا خبره دا ده چې د دغه مخالفینو له جملې څخه د یوه هم مخالفت په منهج کې د تغیر یا په لایحه کې د بدلون او یا د عقایدو ، اعمالو او اخلاقو له پلوه د امارت په قیادت او افرادي قوت کې په نیمګړتیاؤ د اعتراض له وجهې نده او تر اوسه یوه یې هم د خپل مخالفت د توجیه لپاره کوم شرعي دلایل ندي وړاندې کړي. د مخالفت په اړه که د دوی ویناوې او بیانیې وکتل شي ، ټولې عرفي ساده خبرې ، ښکنځل ، تورونه ، تهمتونو او بهتانونه دي او د حسد او کینې بوی ترې پورته کېږي .

دغه ډول مخالفت چې ظاهراً نوم د اصلاح ورکول کېږي په اسلامي امارت کې د نفاق او درځ له پیدا کولو پرته بل ارمغان نلري او دغه ډول مخالفت زیاتره یا د حسد او کینې له وجې وي ، یا د هوا او هوس د غوښتنو له وجهې وي او یا یې تر شا پټ استخباراتي لاسونه وي ، او دغه ډول مخالفین پردیو استخدام کړي وي او اوس ترې کار اخلي .
د افغانستان اسلامي امارت قیادت باید هر هغه چاته غوږ کېږدي چې مخالفت یې د الله لپاره وي او د هر هغه چا د غوښتنو په وړاندې کلک ودرېږي د کومو مخالفت چې غرضي وي او هدف یې ترې مادي او سیاسي امتیازات وي .
اسلامي امارت باید په خپلو مشرانو او افرادو کې له الله جل جلاله څخه ویره پیدا کړي او د الله جل جلاله په کتاب یې تمسک ته راوبولي ، د سیاسي او مادي امتیازاتو د ورکړې په بدل کې د یو چا له ملاتړ څخه تیر شي ، ځکه د هوا او هوس غوښتنې ډیرې زیاتې وي او اخر به د دغه خلکو غوښتنې تر داسې بریده ورسېږي چې بیا به یې امارت هم د هوا او هوس غوښتنې نشي ورپوره کولای ، نو بیا چې په پای کې د دوی په ضد دریدنې ته مجبورېږي نو سر له اوسه یې باید په وړاندې ودرېږي .

الله د موږ ټولو ته د سمې لارې هدایت وکړي .
آمین یا رب العالمین

## ګران منصور صاحب ته!

زموږ ګرانه رهبره!

ته د ثالث عمر د لاس نهال يې!

ته يې زړه ته نيږدې وې ځکه يې پر تا باور وکړ تاته يې د مسلمانانو د ګډ ستر کور اسلامي امارت کنجي په لاس درکړه.

زموږ ګرانه رهبره !

تا د لوی الله جل جلاله په توفيق د اسلامي امارت سپېڅلې قافله له پيچلو کړليچونو تيره او د بري پر لور سوق کړه.

اسلامي امارت يو ځل بيا په سياسي او نظامي ډګر کې وځلېد ، کربښې يې غوړه ، څرګندې او ليکې يې منظمې شوې لکه بنيان مرصوص .

زموږ ګرانه رهبره!

څوک خبر نه ؤ د مرحوم اميرالمؤمنين رحمه الله سيوری ستا له سره لرې شوی ؤ ، خو ته وارخطا نشوې ، اوږه د په يوازې سره دې ستر غم ته ورکړې وه ، د دغه ستر خبر پټ ساتل يو بې ساری حکمت ؤ .

د اسلافو پر لار ګام ؤ ، لوی جهادي مصالح يې پر ځان کې رانغښتي ؤ ، تا د دغه ستر حکمت په برکت د نړۍ د لويو استخباراتي سازمانونو څرخ چپه وڅرخاوه ، دوی پر نورو خندل خو تا نړۍ پرې وخندوله ، يوه درنه څپېړه د پر تور مخ ورکړه .

زموږ ګرانه رهبره!

تا د اسلامي امارت د سپېڅلې کاروان هر لوی او واړه کاروانې ته د زړه مينه ورکړې وه ، ځکه يې په بيړه تاته د زړه مينه درکړه ، په خورا ولولو يې بيعت درسره اعلان کړ ، ستا لمن يې ونيوله او پر تا پسې روان شول .

زموږ ګرانه رهبره !

ستا مدبرانه قيادت د لمر په څېر هر چاته څرګند دی ، تا په عالي تدبير او لوی صبر د فتنو هغه لاسونه په بيخ کې غوڅ کړل چې اسلامي امارت ته راغزېدلي ؤ ، غوښتل يې د لکونو شهيدانو ، کونډو ، يتيمانو د فداکارۍ ثمره تالاترغه او د جهاد سپېڅلي آرمانونه لوټ کړي .

زموږ ګرانه رهبره!

الله د ژوندی لره ، الله د په حق باندې ثابت ، الله د سر لوړی او بريالی لره.

آمين يا رب العالمين

## ملغلرې

**د لونو سره احسان د جهنم اور ته پرده ګرځي (الحديث)**

**رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي: مَن ابْتُلِيَ مِنَ الْبَنَاتِ بشَيءٍ فَأَحْسَنَ إِلَيْهِنَ كُنَ سِتْرًا لَهُ منَ النَار . (رواه البخاري)**

**ژباړه: که څوک په لونو مبتلا کړل سي او دی له هغو سره احسان وکړي، هغوی به يې د جهنم په مخ کي پرده وګرځي**

**رسول الله ( صلى الله عليه وسلم ) فرمايلی دي:**

- **هغه څوک به تاوان نه کوي چي استخاره کوي**
- **هغه څوک به پښېمانه نشي چي مشوره کوي**
- **او هغه څوک به محتاجه نسي چي په مصرف کی ميانه روي کوي.**

**( رواه الطبراني)**

خبیراحمد مجاهد

# سلیم حاجي

## له یاده مو نه یې وتلی !!!

ممکن دځینو ورونو په زړونو کې داخبره وګرځي چې داسلامي امارت ټول شهیدان او کوچیدلي مشران، چې نن زمونږ په منځ کې نشته او دالله تعالی لورته تللي، هریو یې دهیرولوندي !

هو همداسې ده، داسلامي امارت په لیکو کې چې هرشهید او مشر-راواخیستل شي، په خپل ځای کې دمحاسنو، نیکیو اوقهرمانیو لوی لوی نومونه اودنګ منارونه و اودي ، چې دامکان ترحده باید وخت په وخت دهغوی دغوره کارنامو اواخلاقو یادوني وشي، ځکه داسلامي امارت په لیکو کې چې څومره مشران تیر شوي اوراغلي اویا اوس لله الحمد موجود دي، دمشری مقام ته لدې امله ندي رسیدلي چې ګواکي هغوئ دپام وړ سرمایی اوشتمنی درلودي، یا دقوم، ژبي اوسمت په امتیاز د نوم او مقام لایق بلل شوي

بلکې ټول داخلاص او امانتداری مشالونه او قیمتي خزاني وي چې همدغوکمالاتوداسلامي امارت لیکو اومسؤلیتونو ته فایز اودخدمت مصدر ګرځولي.

مرحوم مولوي سیدمحمد حقاني هم دهمدغو درنو مشرانو له جملې څخه وو چې الله تعالی دخاصو لورینو اوکمالاتو له وجې داسلامي امارت په پاک صف کې دسترو خدمتونو اوکلیدي مسؤلیتونو دترسره کولو توفیق ورپه برخه کړی و

غواړم دمقبول حقاني صاحب د جهادي، علمي او فرهنګي ځانګړتیاوو په باب داسلامي امارت دځینو درنو مشرانو ، مسؤلینو او په خاص ډول دفرهنګي کمیسون دغړو او دهغه دنیږدي ملګرو ، مختصر تاثرات راواخلم او دذکر خیر په توګه یې دڅرک مجلي مینه والو ته وړاندې کړم:

**شیخ القران والحدیث مولوي نورمحمد ثاقب صاحب:**

مابه چې کله مرحوم حقاني صاحب ولید له عجز اوخاکساری ډکو قدمونو اوپیاده تګ به یې ماته جناب مفتي فرید صاحب رحمه الله راپه یاد کړ ، دمفتي صاحب مبارک به هم دتګ همداسي هئیت اوشکل وو

دغه راز حقاني صاحب به چې هرچا ولیداومجلس به یې ورسره وکړ هغه کس ته به دااحساس وشوچې له بل هرچا یې له ماسره زیات محبت او اخلاص دی او په رښتیا چې همداسې وو هم، الله تعالی دې پرې زیات رحمتونه نازل او ټول خدمتونه دې ورته قبول وګرځوي.

**محترم مولوي اميرخان متقي:**

زما او مرحوم مولوي سيدمحمد حقاني رحمه الله، ترمنځ اوږده، خوږه اوجهادي ملګرتيا وه، لـه الله تعالی څخه اميد لرم لکه څنګه چې په دې دنيا کې سره ورونه اومخلصين وو، په اخرت کې هم سره په جنت کې يوځای پيداکړو، ترکومه حده چې ما هغه پيژندلی وو، لـه شک پرته چې حقاني صاحب يوښه ځيرک ديني عالم وو، جهاد او اسلامي امارت سره يې دزړه لـه تله مينه اوخلوص لاره، داداري کار په زړه پوري وړتيا يې لرله، لـه ملګرو سره يې وفا اومينه رينښتيني وه ، په عملي کارونو کې يې ښه ابتکار درلود اودعام ولس په درد به دردمن اوپه خوښيو به يې خوشحاله وو، رحلت اووفات يې په مجموع کې اسلامي امارت اوپه خاصه توګه فرهنګي کميسون اوقلموالو ملګرو ته لويه ضايعه ده، الله تعالی برکتونه دده په کورنيو او ټولو ملګرو ولوروي.

**محترم مولوي سعدالدين:**

مرحوم مولوی سيدمحمد حقاني ذهين عالم و بردباري او تواضع يې خاص خصلتونه و تل به يې توصيه داوه چې زشته رويه اوبرخورد بايد لـه چاسره ونشي ، مثالي تقوی اوزهد يې درلود نه يې دچا خپله غيبت کاوه او نه يې دغيبت مجلس خوښاوه هرلمونځ به ئي په جماعت اداکاوه که هرڅونه مشقت به هم وو،هرلمانځه ته به يې نوی اودس کاوو، مايوه ورځ پوښتنه ورنه وکړه چې ته خوبه معذورنه يي په ډيره سخته يخنی کي هم هرلمانځه ته اودس کوي ده راته وويل که ئي ته په ثواب خبرسي هيڅکله به يې پرينږدي ، دهرچاسره به چې کله مخ سو هغه کس به دافکرکاوو چې دی مرحوم يوازي زمادرازملګری دی ،اوصاف خوئې ترحساب ډيردي ترټولونادره اوجالبه ماته داوه چې موږ۲۱کاله سره کلکه ملګرتيا درلوده زما نه يادېږي چې يوبل ته مو ګيله قدري هم سره کړي وي،

يوبل ډيرعجيبه خوی ئی داوه چې ديوکس سره به يې جوړه نه هم نه وه ،خوهيڅکله به دغه کس دده په برخورد اوناسته ولاړه نه پوهيده يعني دومره غټ زغم ماهيڅکله په چاکې نووليدلي، الله دی درحم اوکرم معامله ورسره وکړي

**قاري محمد يوسف احمدي داسلامي امارت وياند:**

زموږ خوږ، مشفق او مشر ملګری مرحوم مولوي سيد محمد حقاني صاحب چي موږ او تاسو ورته په شريف حاجي صاحب او ياهم سليم حاجي صاحب خطاب کاوو دپوره کمالاتو، کمالاتوکان او دغوره اخلاقو ، علميت ، ظرافت ، متانت او قناعت ، يوه نمونه وه نوموړی دهمدې غربي ښکيلاک په مهال دروانو ناسموجرياناتو اوپيچليو مسائلوپه وړاندي ښه مبارز ، امين مشاور، په فرهنګي اوسياسي چارو کي پوره ماهر او ځيرک ديپلومات وو داسي يو پوره کس وو لکه چي مولانا ی بلخ ديو کامل انسان په اړه فرمايي:

گوشتِ پاره آدمي اززورِجان

مي شگافد کوه را بابحروکان

خدای بخښلی دهرمشر، کشر او همځولي سره ديومناسب تعامل او چلند يو ژوندی مثال وو

دجهادي فعاليتونو وهر اړخ ته به ډيرزيات متوجه وو هغه که به ددښمن په وړاندي دمجاهدينو عمليات ول او که به له ملکي خلکوسره ددوی راشه درشه وه.

موږ ته به يې دا توصيه ډيره کوله چي په هر وخت، هر ځای او موقعيت کي چي ياست بايد خپل کار ته متوجه اوسئ داسي فکر ونه کړئ چي دا فلان را پورر رانه دامکاناتو دنه شتون له امله يا پاتې شو او يا هم لا اقل وځنډيد ځکه موږ تاسو ته ستاسو دکار اسباب

په هرقيمت چي وي پيداکوو او پدې اړه موږ کوم عذر نه لرو

او دا بــه يــې باربــار راتــه ويــل چي دکار له ملګرو سره چي مو څومره کوښښ کيږي نور هم په صميميت کـي پـاتې شـئ ځکـه دا هغـه څـه دي چـي ستاسو پر کارونو مستقيماً بد تأثير پـرې بـاسي او دی بـه دملګـرو تـر مـنځ په دوستانه فضا ډير زيات خوشحاليده ډيـر لـه شـهرت او خودنمـايي نـه لـرې خدای ته نيژدې يـو مخلـص انسـان وو او دمولانا ددې قول يو ښکاره مصداق وو چي وايي

((شيــــر آنــَــست آن کــِــه خــود را بِشــکـنـد ))

له موږ نه وکوچيد خو موږ به يې يادونه او هدايات دژوند تـر پايـه راسره ژوندي ساتو.

**مولوي عبدالحي مطمئن :**

حقـاني صـاحب تـه الله پـاک زيات نيک خصلتونه اوځانګړتيـاوي ورکړي وي ، هغه چې په کنـدهار کـي داطلاعاتو اوکلتـور مسـؤل وو اومـونږ هم هلته خدمت تـرسره کـاوه ، ددنيـوي خواهاشاتو اومرفه ژوند دبرابرولو خواته يې چندان ميلان نه درلود ، بلکې پـه رياست کې دننه يې يوه فقيرانه جونګړه ځانته منتخبه کـړه، هلتـه بـه اوسيده ، دينـي مطالعـه بـه يـې کولـه ، څوتنـو طالبانو ته بـه يـې درس وايـه اوهـدف يــې داوه چــې قــدرت او رياســت ترينه ددرس او طالبی سوچ بدل نکړي.

حقاني صاحب کې دامزاج موجو د وو چې په مجلس کې به يې دملګرو نظــر او رايــو تــه ډيــر پــه درنــه سترګه کتل، په مجلس به يې خپله رايه نـه تپلـه، کوشـش يـې داوه چـې هـم په مجلس کې له ملګرو څه واوري ، هـم ملګـري تشـويق اووروزل شي او هم يوه فايده په ناسته مرتبه شي ،

حقاني صاحب که څه هم داسراف مخـــالف وو، خوپـــه عـــين حـــال کې يې کاملـه سخاولورينه درلـوده ، کله چې حقـاني صـاحب لـه کنـدهار څخه کابل تـه تبـديل شـو او درياسـت دنـده ماتـه وسپارل شـوه، نوپـه نـورو توصيو سربيره يې داخبره راته وکړه چې کلـه مـامورين درتـه راتلـل اودځـه مرستي غوښتنه اوعريضـه درلـوده ، نـو يومخ بـه يـې نـه ځوابـوې حتما يوځه ورتـــه ليکـــه او ورکـــوه يـــې چـــې مايوسه ولاړنشي.

**ذبيح الله مجاهد ، داسـلامي امارت ويندوي:**

حقاني صاحب دحق ويلو، حق ديد، حق اوريدلو، حق منلو او حـق اوسيدلو يو دنګ منار وو، کله به يـې چـې يقـين وو چـې دا لاره حقـه ده، د هـيڅ شي پـه بدل کې يې هم هغه مسير نه پريښـود، د منازعـاتو او مشـاجرو پـه اړه د فيصـلې پرمهال به يې حق تـه کتـل، دغوصـې او خفګـان لـه املـه لـه حـق څخـه نشـو تيريدای، د عمر تر پايه په حق پـاتې شـو او له حق سره ملګـری دحـق پـه لاره لـه حق سره وصل شو.

مولوي سيدمحمد حقاني صـاحب دهيچـا تـرمنځ شـخړه او اخـتلاف نـه غوښت، له هغـو کـړو وړو څخـه سـخت لـرې او پـه فاصـله کـې اوسـيده چـې د اختلاف سبب به ګرځيدل، د خپلو وروڼو ترمنځ، دخپلوانو ترمنځ، دملګرو ترمنځ، د خپل جهادي صف ترمنځ او حتی دعـامو مسـلمانانو تـرمنځ تـل د خـبرو، تفـاهم، درګـذر، حوصلې او يـو دبـل د احـترام غوښتونکی وو.

حقـاني صـاحب دالله د وصـال لار لنډه کړه، خو پاتې شونو ملګرو، وروڼـو، اولادونو او ټولو دوستانو او متعلقينوتـه يـې داسـې عمـلي درس ورکـړ چـې کـه څـوک يــې پــه لاره لاړ شي، خــوي او عادات يې خپل کـړي، اخـلاق او رويـه يې تعقيب کړي نو به لکـه دی همداسـې محبــوب او منلــی شخصــيت تــرې جوړيږي، مرګ د ټولو پسـې دی، ټـول د ده غوندې پـه يـوه بهانـه مـرو خـو بايـد

داسې مړه شو چې هيڅوک رانه خفه نه وي، هيڅوک مو زهير کړی نه وي، هيڅوک مو بد ياد نکړي او ټول راپسې د هجر او فراق په اور کې اوښکې توېې کړي او ساندې ووهي.

**مولوي نجيب الله کونړي:**

له مرحوم حقاني رحمه الله سره ، زما تعلق څه وخت دآ مر اوماموور په حيث پاتې شوی ، په دې معنا چې هغه دچارو ادارې مشر وو او زه ورسره مرستيال وم ، په چارو کې يې لوړه حوصله درلوده ، دنظم او شفافيت طرفدار وو ، دخيرخواهی مزاج يې درلود ، څوک به چې ورسره کيناست له مجلس څخه به يې نيک تاثر وو ، نور بې شماره غوره اوجامع کمالات الله پاک ورکړي وو ، نو ضايعه يې داسلامي امارت په کچه ډيره لويه وه اوپه رښتيا چې مونږ له يوه درانه اومشفق مشر ملگري څخه محروم شولو، متعال رب دې پرې رحمتونه نازل کړي.

**زبير مسافر:**

**د الاماره ويب پاڼې مسؤل مدير**

مولوي‌سيد محمد حقاني يو علمي او جهادي شخصيت او سياسي څهره وه، مرحوم حقاني صاحب د داسې‌حميده اخلاقو او صفاتو څښتن وو چې په ډيرو کمو خلگو کې پيدا کيږي

نوموړی ددې تر څنگ چې يو فعال او پور کاره مدير وو دداسې‌نيک سيرت خاوند وو چې په يو ځل ليدلو به يې د خلگو په زړونو کې ځان ته ځاي‌پيدا کاوه.

تمه وه چې دمرحوم حقاني صاحب د کاري تجربو او ابتکارونو له املة به اسلامي‌امارت لا زياتې دپام وړ لاسته راوړنې درلودلې واى، خو تقدير په موږ و نه لوراوه، موږ ديوه کم ساري او فوق العاده استعداد درلودنکي‌شخصيت څخه بې برخې شو.

**(دمورچل مجاي مسؤل مدير مفتي شاهد حقاني)**

ترکومه ځايه چې ما مرحوم مولوي سيد محمد (حقاني )رح پيژانده ،هغه ديوه خورا درونـد شخصيت درلـودونکی ،سپين زړی مسلمان ،متواضع ،علم پال او فرهنگپاله انسان و،دغوره اخلاقو،ښه سليقې او اجتماعيت يو داسې سمبول وو،چې سړی يې خپل چم کې بيلگه نشي ښودلی ،داسې بريښيده، لکه دا ژوند چې ورته يو الهي امانت او ډير موقت ښکاريده اونه يې غوښتل چې شاته يې څوک د اسلامي انساني تشخص په باب داسې پريکړه وکړي ، چې دده اروا ترې په قبرکې نا ارامه شي ،بس داخلاقو ،ديانت ،مجاهدې ،اداره پوهنې ،فرهنگپالنې اوداسلام په لاره کې دسرښندنو اونذرانويوه داسې بيلگه الگو وه، چې بيا موندل ناشوني دي !!

چې چا يوځل هم ليدلی وي، نوبويه چې کلونه پس به يې هم هير نشي او له تبسم نه ډکه قيافه به يې تل ورته ياده وي . (حقاني صيب ) يوه داسې هستي وه چې رحلت يې يوه لويه تشه رامينځته کړه اومونږ يې دويراو ساندوپه ټغرکښينولو!

روح دې ښاد او قبردې ورته دکائناتولوی څښتن دجنتونوپه عطرونو معطر کړي !

**مولوي حفيظ الله اغا:**

ترکومه حده چې مرحوم حقاني صاحب مونږ پيژاند او کاري تعلق مو ورسره پاتې شوی وو په نورو نيکو خويونو اوکمالاتو سربيره هغه ته الله پاک ښه تواضع اوعاجزي ورکړي وه ، تکبر اوبخل يې نه درلود ، دملگرو ترمنځ داتفاق او اتحاد ډير طرفدار وو ، سخي مزاجه وو خو په عين حال کې يې له اسراف څخه هم کرکه درل وده ، په جهادي امورو کې بوختيا او

خدمت کـه وړوکـی بـه وو کـه لـوی خونـد بـه یـې ورکـاوه ، کـوم ملگـري چې داستعداد لـه مخې بـه کمزوري وو حوصله به یې ورکوله اوتشویقول به یې او ترټولو غوره ځانگړتیـایې داوه چې په جمعه دلمانزه به زیـات پابنـد وو اوځان به یې جومات ته رساوه.

**مولوي عبدالرحیم ثاقب** :

مرحوم حقـاني صـاحب د خپلـو هـم خیلانــو پــه مــنځ کــې ځــو بُعــدي جامع الکمالاته شخصیت و .

مجاهد عالم و، ماهر سیاست پوه و او متواضع مسؤل و.

مرحوم حقـاني صـاحب سره لـه دې چې ټول وخت یې د یوه ښه اداري کار پـوه او تجربـه لرونکـي دیپلومـات پـه توگه په مسؤلیت کې تیـر شـوی و خـو بیایي هـم هـیځ کلـه خپـل ځـان پرخپلـو ملگـرو بانـدې لـوړ نـه گانـه ؛ بلکـې کوښـښ یـې کـاوه چـې د خپلـو کـاري ملگــرو لــه تجربــو او کــاري پــوهې ځخه استفاده وکړي.

**مولوي عبدالحنان همت**:

شاوخوا ۲۲ کاله کیږي چې مرحوم حقاني صـاحب سره مـې پیژنـدلو او گـډ کار مې ورسره کړی دی.

نو که په لنډو کې درته ووایم ډیـر له خدایه وریـدونکی ، پرکـاره ډپلومـات او دډیرو نیکو اخلاقو څښتن و.

ملگـري او متعلقـین یـې خوشـاله ساتل او په کـارونو کـې ښـه مـدریت یې ځـانگړی صفت و چا چې پیژنـدی هغوی ټول په یـوه خولـه نیکـې خـاطرې ځیني لري

مرگ یـې داسـلامي امـارت لپـاره لویه تشه ده الله ج دې رحم پر وکړي

**قاري حبیب** :

د مرحوم مولوي سید محمد حقـاني د وفـات پـه اړه د ده د ملگـرو او عـامو هغـو خلکـو چـې نومـوړی یـې پیژانـد غبرگون او د محبت اظهار تر معمول حد زیات و، ډیرو خلکـو وربانـدې افسـوس وکړ او حتی هغو خلکو هـم ورتـه خـورا ډیره مینه ورکړه چـې نومـوړی پـه ژونـد کـې یـوازې یـو ځـل لیـدلی او پـه یـوه مجلس کې یي ورسره شرکت کړی و.

د نوموړي لپاره د مسلمانانو تر منځ دا محبوبیت ډیر سـتر افتخـار دی،ځکـه دالله تعالی په نزد د یو چا د محبوبیـت او مبغوضیت تر ټولو ستره علامه داده چې نوموړی د ځمکې د خلکو په زړونو کې ځنگه ځای لري،کـه ځـوک د الله تعـالی دمخلق په زړونو کې محبوب وي نو بې

له شکه دالله تعالی په نـزد هـم محبـوب دی ځکه د بخاري او مسلم حدیث دی

ابي هریرة رضی الله عنه وایي چـې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: کله چې الله تعالی له یـو چـاسره محبـت لري نو جبریل راوغواړي او ورته ووایي چې زه له فلان شخص سره محبت لرم تـه هم ورسره محبـت کوه،نـو جبریـل ورسره محبت کوي او بیـا جبریـل اهـل السـماء ملائکو ته ووایي چې الله تعالی له فـلان شخص سره محبت لري تاسـو هـم ورسره محبـت کوئ،بیـا ملائکـه هـم لـه هغـه شــخص سره محبــت لــري تــر دې چــې وروسته دغه محبت ځمکې تـه رانتقـال شي او الله تعالی همدغه کس پـه ځمکـه کې هم محبوب وگرځوي.

بالمقابل بغض یا بدایسیدل هم کـټ مټ همداسې دي،د الله تعالی په نزد چـې څوک مبغوض وي،نو د هغه کس پـه اړه حضرت جبریل ته ووایي چې فلانـی زمـا بدایسيـ تـه هـم ورسره بغـض کوه،بیـا جبریل هغه شخص بد ایسوي تر دې چې جبریل نور ملایکو ته ووایـي چـې فـلان شخص د الله تعالی مبغوض دی بیـا یـې ملائکـه هـم بدایسـوي تـر دې چـې د نومـوړي شـخص پـه اړ بغـض دځمکـې مخلوق ته رانقل شي او د ځمکې پر مـخ هـم هغـه مبغـوض شي او د هرچـا نفـرت ترې کیږي.

د دې متفق علیه حدیث له مخې په اسلامي ټولنه کې د یوچا لپاره عام محبوبیت د سعادت خورا ستره نښه ده چې د ډېر بختور شخص به په نصیب کیږي.

د حقاني صاحب یو ستر خوی شرافت او لوړه اخلاقي رویه وه،نوموړی داداري سلسله مراتب له اړخه زموږ مشر ـ و، مګرد ځو کلنې ملګرتیا په ترڅ کې مې له نوموړي هیڅکله داسې قول،فعل یا چلند حس نه کړ چې ځان د نوموړي په نسبت حقیر یا تر امر لاندې حس کړم،نوموړي په اداري ماحول کې له کارکوونکو سره په افقي تعامل باور درلود، تجربو ثابته کړې چې په اداري ماحول کې د عمودي تعامل په نسبت افقي چلند په مراتبو ښه اثر لري،په افقي چلند کې آمر خپلو ترلاس لاندې کسانو ته د مأمورینو نه بلکې د ملګرو په نظر ګوري، فرمان یې د أمر نه بلکې د التماس په لهجه وي او د ملګرتیا یو ماحول یې جوړ کړی وي، په اصل کې دا چلند د رسول الله صلی الله علیه وسلم طریقه ده،چې خپل تر لاس لاندې کسان یې اصحاب یعنې ملګري بلل،له هغوی سره تعامل یې بشپړ طبعي او د لوړو دیني انساني اخلاقو او صمیمیت ډکه مالامال و.

د مرحوم حقاني صاحب بل صفت چې له امله یې نوموړی په هر چا خوږ لګېده،خوشرویي،همیشنۍ موسکا او مینه ناک چلند و،هیڅکله یې غوسه او سخت ګیري نه کوله، د ترخو تجربو د زغم ، له پامه غورځولو او هیرولو چل یې زده و.

نوموړي د شرافت او اخلاقو کرښو ته همیشنی تعهد درلود، هیڅکله په ټیټو او کم ارزښته موضوعاتو نه غږېده، هیڅکله مې د ضدبازۍ، سیالۍ، انتقام، قومپالنې، منطقه پرستۍ ، تاوېلي ماوېلي او دغسې نور مبتذل او بې ارزښته بحثونه حتی په ډېرو خصوصي مجالسو کې هم ترې وانه ورېدل،د ګیلې، شکایت او غیبت عادت یې نه درلود او تر ډېره حده یې په اشخاصو بحث نه کاوو بلکې په موضوعاتو به غږېده.

په شخصي لحاظ پاک او حیاناک و،له همیشنۍ او ظرافت سره سره مې نه یادیږي چې د بې باکۍ تر حده دې ټوکې کړې وي، له خلکو سره یې چلند د هغوی د عمر،منصب،استعداد او ټولنیز مقام په اساس نه بلکې د خپل شرافت او مروت په مبنی و،هر مسلمان ته په احترام قائل و، د مجلس په مهال یو ښه اوریدونکی و چې د مخاطب خبره به یې په پوره شوق او داد سره اورېده. الله تعالی دې

په جناب حقاني صاحب رحم وکړي او برکات ته یې په ورونو او اولادونو کیږدي . آمین یا رب العلمین

**مولوي شکیب فرهاد:**

ښه صفتونه ښایي ډېر خلک ولري خو په یو چا کې دومره موجود وي، چې د هغه په مړینه او نشتوالي کې په ټولنه کې ستره خلا احساسیږي .د دې واقعیت لپاره موږ بلا ډېري بیلګې موندلای شو.

یو چا ډېر ښه ویلي دي چې:

"مشرتوب او رهبري یو وخت د ځواک ښوودنې معنا درلوده؛ ولې نن د خلکو سره د مرستې او خواخوږۍ معنی لري، او انسان هغه وخت عظمت ته رسیږي چې د نورو د ګټو لپاره زیار وباسي"

حقیقت دی چې دا شی ما په حقاني صاحب کې لیدلی و(...

**عبدالواحد ریان:**

محترم حقاني صاحب سره زما لمړي لیدنه هغه مهال وشوه چې نوموړي د کندهار داطلاعات او کلتور ریاست رئیس او زه د دلیسې ـ شاګرد وم، له غزني کندهار ته راغلي وم او ریاست ته ورغلم ،حقاني صاحب زموږ د پلار (استاد ریان صاحب) کوټې ته راغي (نوموړي به دفتر تر راتګ وروسته په هغه دډېوښتنې او احترام لپاره د هغه

کوټي ته نژدي هرسهار راته ) او چا زما تعرف ورته وکړ، نوموړي ډير گرم روغبړ راسره وکړه او ديومشر ملگری په څير يي شفقت راسره وکړه،له هغ لمړي ليدني راته ډير درونـد ،وفادار،مدبر او قدر شناس شخصيت را معلوم شو،

هغـه سره بـه کلـه مـوږ دمشرانو مجلس ته ورغلو هلتـه بـه يـي مـوږ تـر خپل استعداد او کمال ډير لوړ معرفي کړو ، او ديره احترامانه برخورد به يي کاوو د چي له دمجلس ټولو خلگو به هم په همدي ډول وضعيت وروسته راسره کاوو.

مرحوم حقاني صاحب زموږ دټولني يو غټه تشه درک کړي وه چي هغه په ځانه د نه اعتماد ستونزه وه، نوموړي چي په ډيرو مجلسو کي به د مجلس مشري ورلغاړي وه او پـه ډيرو غټو مجلوسو کـي بـه يـي هـم کشران ملگـري د نظـر ورکولو ته هڅول او بيا به ي نظر ته ډير په ديقت غوږ نيو، ترڅو پـه ځان اعـتماد وکړي او داينده لپاره تيار وي.

زما دپلار محترم ريان صحب خبر چي حقاني صاحب ډيـر هوښـيار، مـدبر ،وفادار او قدر شناس شخصيت دي.

لنډه دا چي ډير سخي او ملگرو پـه روزنـه کـي ډيـر حـريص وو او داوس ډيـري مشرانو ملگـرو د اسـتعداد پـه لوړولو او شخصيت جوړونـه کـي ډيـره ونډه د مرحوم حقاني صاحب وه . الله جل جلا له دي په خپل ديدار خوښحاله او قبر منور وگرځوي

## ابوصهيب حقاني هراتي:

حقـانی صـاحب مرحـوم چنـان شخصيت اخلاص مندی بود که هر کسی با ايشان برای اولين بار ملاقات می کرد تحت تاثير اخلاص وجودشان قرار مـی گرفت و چنـان فـداکار بـود کـه هميشـه ديگـران را بـر خـود تـرجيح مـی داد و زمانی خوشحال می شد کـه خوشـحالی را در همکاران و شاگردان شان حس می کرد.

مرحوم يک انسان بسيار دلسوز و مهربانی بود و هميشـه ايـن موضـوع را راحت می شد از حرف های شـان فهميـد چنان دلسوزانه سخن می گفت و چنان با درد و دلسوزی حرف می زد که دلها بـه وُجد آمده و دلنشينی سخنان شيرين شان کاملا احساس می شد؛

سيد محمد حقانی رحمـه الله چنـان در کارش و تشويق دوستان بـه فعاليـت های جهادی خُبره و چيره دست بـود کـه انسـان اصـلا در کنارشـان احسـاس خستگی نمی کرد و چنان خـوش خلق و مهربان بود که آدم می خواست ساعت ها با آن بزرگوار مجلس داشته باشد و از حرف های دلسوزانۀ شان لذت ببرد.

حقانی صاحب با هر کسی به گونـۀ رفتـار مـی کـرد کـه هرگـز احسـاس بيگانگی و دلتنگی نکرده و به شدت بـه کـارش تشـويق باشـد؛ و همينطـور در حوصـله افزايـی، نمونـه بودنـد؛ اگـر مشکلی بود و يا موضوعی را با دوستان شريک می ساخت بسيار با حوصله بـه نظرات تک تک شـان گـوش فـرا داده و ارج می گذاشت، بارها اگر مـزاحم وقـت شان شدی، با حوصله و خوش رويی می پذيرفت و بـا متانـت و آرامـش بـه تمام حرف های دوستان مخلصانه گـوش مـی داد و با علاقه مندی و احترام خاص نظر خويش را راجع به مسائل بيان می کرد.

از ديگر صفات بارز حقانی صاحب مرحوم نـرم خـويی و تواضـع شـان بـود؛ ايشان چنان نرم طبيعت، خـون گـرم و بـا محبت بود که هـر کسـی شـيفتۀ اخـلاق زيبـا و نـرم خـويی شـان شـده و از همکلامی با ايشان لـذت مـی بـرد؛ و در عين حال بسيار با تواضع و فروتن بـود، شکسـته نفـس و آرام، خـوش گفتـار و متين، با حوصله و بردبار که اميد داريـم الله متعال جای ايشان را بهشت فـردوس بگردانـد و مـا از ايشـان نهايـت راضـی بوديم الله از ايشان راضی باشد.

**نبیل**:

دهرڅاخبرې ته ټوله توجه او له هرڅاسره په ورین تندي مخ کېدل، دادوه صفته که که هروخت یادیږي ورسره به شهیدحقاني هم هغه چاته خامخا یادیږي چې له نوموړي سره یې لیده کاته شوي وي، که څه هم یواځې یوځل یې لیدلی وي . رحمه الله.

**عزیزي** :

مرحوم مولوي سیدمحمد حقاني صاحب، له دولسیزو زیات ما پیژاند ، هغه که دکندهار داطلاعاتو کلتور ریاست مرستیال، بیا رئیس ، ورپسې- دبهرنیو چارو وزارت مرستیال ، له هغه ورسته په اسلام اباد کې داسلام ي امارت لوی سفیر ، بیا دچاروادارې لوی رئیس او اوس دفرهنګي کمیسون مرستیال وو ، په دغو ټولو دورو او لوړو دندو کې ما له محبوب اوخواږه حقاني صاحب سره لیده کاته ، تعلق اوناستې پاستې شوي ، باور وکړې چې هرځل مې لیده ما به دملګرتیا نوی احساس ورنه اخیست اودافکر به مي کاوه چې دحقاني صاحب له ماسره زیاته مینه او محبت دی ، په داسې حال کې چې هر ملګري به همدغسې تاثر ورنه په زړه لاره او واقعیت هم همداسې وو.

هرځل چې زه ورسره مخ شوی یم داخلاقو اودیانت ددغه هسک منار له خولې اوڅبې څخه به داسې توصیې او مجرب نکات لورول کیدل چې باور وکړې زما لپاره به هغه ډیر قیمتي ثابتیدل اودخدمت دسرعت باعث به ګرځیدل، هیڅکله ما نه وو ترې اوریدلي چې داکار اوکارنامه ما کړي بلکې هرڅه به یې دملګرو دخدمت اوهڅو محصول ګڼل .

دحقاني صاحب دې خبرې چې له وفات څخه یې یوه شپه وړاندې راته وکړه تراوسه مې په ذهن کې انګازې لري ، هغه وویل: عزیزي صاحب ملګري سخت ډیراباندي ګران وي، چې هیڅ تصور یې نشم کولای اوحد نشم ورته ټاکلی، په کامیاب خدمت یې سخت خوشحالیږم، چې په راحت کې وي داسې فکرکوم چې زه په راحت کې یم

حقاني صاحب په همدې مجلس کې داخبره هم راته وکړه چې په دې نیږدې ورځو کې مو له منصور صاحب ملاقات وشو، دفرهنګي کمیسون مشران ملګري هم راسره و، خورا ښه اوپه زړه پوري مجلس مو ورسره وکړ، جالبه داوه چې مونږ څومره هڅه کوله ترڅو دفرهنګي کمیسون هڅې او خدمتونه ورته بیان



اومخې ته کیږدو، هغه به زمونږ له اټکل اوفکر زیات دملګرو داخلاص او هلوځلو ټکي وویل چې مونږ به یې سخت متاثره کړو، حقاني صاحب ویل یوه بله نادره به هم درته ووایم چې کله دمانزه وخت راغی منصور صاحب شاوخوا کتل چې څوک مخته شي اوامامت وکړي ، ما پرې غږ کړ چې نن به حتما ته زمونږ دلمانځه امامت کوې، بیا به چیرته سره پیداکوو، زما دا تصور وو چې همدغه ښه موقع ده چې دمسلمانانو په امیر او خلیفه پسې مونږ وکړو ګوندې دامو هم په اخرت کې دالله په حضور کې دبښلو یوه زریعه وګرځي ، هماغه وو چې منصور صاحب شفقت وکړ اوامادہ شو چې لمونز راکړي (اللهم طیب ثراه و اکرم مثواه واجعل الجنة مستقره و مأواه) امین

# دڅرک دارالافتاء

مفتي محمدګل سعيد

**استفتاء:که دطالبانوپه ښځ کړای شوي ماين باندې عام مسلمانان شهيدان شي نودوی ته غسل ورکول کيږي اوکنه؟اوپه دغوبم ښخونکو طالبانوديت اوکفاره شته اوکنه؟**

**افتاء:** دغوشهيدانو ته غسل ورکول واجب اوضروري دي اوپه دغوبم ښخونکوطالبانوديت اوفديه نشته.«فی الهندية :وان انفلتت دابة مشرک وليس عليهاأحدفوطئت مسلمااورمی مسلم الی المشرکين فأصاب مسلمااونفرت دابة مشرک فرمته اوهرب المسلمون فلجأهم الکفارالی ناراوخندق اوجعل المسلمون الحسک حولهم فمشواعليهاوماتوايغسلون خلافالابی يوسف رحمه الله کذافی محيط السرخسي»انتهی (الفتاوی الهندية ج١ص ١٦٨).

وفی البحرمعزياالی المجتبی :واذاالتقت سريتان من المسلمين وکل واحدتری انهم مشرکون فاجلواعن قتلی من الفريقين قال محمد:لادية علی أحدولاکفارة لانهم يدافعون عن أنفسهم ولم يذکرحکم الغسل ويجب ان يغسلوالان قاتلهم لم يظلمهم»

**استفتاء:دعسکرنيت داقامت صحيح کيږي اوکه دده نيت به تابع داميروي؟**

**افتاء:**عسکرپه خپل نيت کې تابع دنيت داميردی.په مراقی الفلاح کې دي:وتعتبرنيت الاقامت والسفرمن الأصل کالزوج والمولی والاميردون التبع کالمرأة والعبدوالجندی انتهی (مراقی الفلاح ج ص ٢٣١)

**استفتاء:مجاهدين چې په جبراوزورله چاڅخه روپۍ يابل شی غواړي داجايزدی اوکنه؟**

**افتاء:**له خلکونه په زوراوزبردستی دجهادپه نوم روپۍ يانورشيان غوښتل نه دي روااونه يې ورته استعمالول روادي بلکه داحرام دي.په ردالمحتارعلی الدرالمختارکې دي:ومن السحت مايوخذعلی کل مباح کملح وکلاء وماء ومعادن ومايوخذه غازلغزو(وقوله غازلغزو)من اهل البلدة جبرافهوحرام عليه لاعلی الدافع انتهی (الفتاوی الشامية ج٥رص ٣٠١)

**استفتاء:دموبايل ځيني کمپنۍ خپلوصارفينوته ١٥روپې قرض ورکوي کله چې کارېلوېکړی شي ياايزي لوډاوکړی شي نوکمپنۍ ددغه بيلنس نه ١٥روپۍ اوشپيته پيسې کټ کوي پوښتنه داده چې داشپيته پيسې زياتی رقم چې کټ کيږي داسوددی اوکنه؟**

افتاء:په مسؤله صورت کې چې کمپنۍ کوم زياتي رقم شپيته پيسې کټ کوي دادسودپه حکم کې داخل نه دی ځکه چې دکمپنۍ له طرفه ١٥روپۍ بيلنس دنغدوپه حکم کې نه دی بلکه يوې مقررې مودې پورې دخبروکولوسهولت دی په دې وجه داتبادله دمال په مال سره نه دی.بلکه زياتی کټوتی ددې سهولت دورکولوعوض دی.

**استفتاء:زمونږپه هیوادکې ځینې دیهودو مؤسسې مسلمانانوته تورات اوانجیل وړیاورکوي آیا دغه کتابونه په کورکې ساتل اولوستل یې جائزدي اوکنه؟**

**افتاء:**جائز نه دي.له درې وجهونه

۱ـ داکتابونه منسوخ شوي دي

۲ـ په دې کتابونوکې عیسویانواویهودیانوتحریفونه کړي دي .

۳ـ دوی مسلمانان په دې سره یهودیت اونصرانیت ته تشویق کوي اوله خپل حق دین څخه یې اړوي.ددغوکتابونوپه ځای الله تعالی زمونږدهدایت لپاره قران کریم رالیږلی دی ،نومسلمانانوته په کاردي چې دقران کریم تلاوت وکړي اوهمدامبارک کتاب پخ خپلوکورونوکې وساتي.په فتاوی شامي کې دي:واختارسیدي عبدالغنی مافی الخلاصه واطال فی تقریره ثم قال وقدنهینا عن النظرفی شئ منهاسواء نقلهاالیناالکفاراومن أسلم منهم انتهی (الفتاوی الشامیة ص ۱۲۰ج۱).

**استفتاء:آیاکفري مؤسسې دمسلمانانولپاره جوماتونه جوړولی شي اوکنه؟یعنې دوی ته مونږاجازه دتعمیردجومات ورکړواوکنه؟**

**افتاء:**کفري مؤسسې دمسلمانانولپاره جوماتونه نه شي جوړولی داکارناجائز دی.الله تعالی فرمایلي دي:ماکان للمشرکین ان یعمروامساجدالله »دادمسلمانانودیني حمیت اوغیرت ته یوه صدمه ده چې دوی ته غیرمسلم عبادت گاه اوبیت الله ابادوي ،اودکفاروپه نجس مال سره تلویث المساجدراځي .علامه شامي لیکلي دي: قال تاج الشریعة امالوانفق فی ذالک مالاخبیثاومالاسببه الخبیث والطیّب فیکره لان الله تعالی لایقبل الاالطیب فیکره تلویث بیته بما لایقبله(الفتاوی الشامیة ج۱ ص ۴۸۷)

**استفتاء:که یومسلمان دمجوسیانو(اتش پرستو) خولۍ په سرکړي آیاپه دې سره کافرکیږي؟**

**افتاء:**که چیرې چادمجوسیانوخلکوخولۍ په سرکړه اویایې له هغوی سره په لباس کې مشابهت وکړنودصحیح قول مطابق داسړی کافرکیږي او که چیرې یې دکوم ضرورت له امله په سرکړې وه لکه دګرمۍ یایخنۍ څخه دځان ژغورلوپه موخه یې په سرایښې وي نوبیا نه کافرکیږي.په عالمگیری کې دي:یکفربوضع قلنسوة المجوس علی رأسه علی الصحیح الالضرورة دفع الحروالبرد(الفتاوی العالمگیریة ص۲۷٦ج۲)

په فتاوی قاضیخان کې دي:مسلم وضع علی رأسه قلنسوة المجوس،قال شیخ الامام ابوبکرمحمدبن الفضل رحمه الله لایکفربذالک قال رضی الله عنه وهذاالجواب انمایصح اذافعل ذالک ضرورة ولایعتقدانه یصیربه کافرافان فعل ذالک وظن انه یصیربه کافراویقصدبه الاستخفاف فی الدین فانه یصیرکافرا.(الفتاوی الخانیه بهامش الهندیة ص۵۷۸ ج۳باب مایکون کفرامن المسلم ومالایکون)

ژباړه:مسلمان په سردمجوسیانوخولۍ کیښوده ،نوشیخ محمدبن فضل رحمه الله فرمایلی دي ،چې مسلمان په سربانددې یوازې داورعبادت کونکوخلکوخولۍ په کیښودلوسره نه کافرکیږي ،قاضي خان ویلي دي ،چې داقول هغه وخت صحیح ده ،چې دغه کاردضرورت له امله وکړي اوداعقیده یې هم نه وي چې په دې سره سړی کافرکیږي ،اوکه چیرې یې داکارپرته له ضرورته وکړاودغه یې گومان هم وي چې په دې سره سړی کافرکیږي اویایې په دې کارسره ددین سپکاوی مقصدوي نوبیابې له شک نه په دې کارسره کافرکیږي.

**استفتاء:که یوڅوکووایي چې عیسایی له یهودي څخه بهتردی یاداچې یهودي له عیسایي څخه ښه دی نوددې ویونکي څه حکم دی؟**

# نـــوروز او اســــــلام

نوروز په اصل کې د اور لمانځونکو یا عبادت کوونکو اختر دی، فقهاء کرامو د نوروز د لمانځلو په هکله دا نظر لري چې، د تعظیم میلې یې نیول او د دغې ورځې احترام انسان د کفر تر کچې رسوي او مسلمانانو ته پکار دي چې له دغه عمل څخه ځان وژغوري او په لمانځلو کې یې ګډون ونکړي.

**نوروز**: د نوروز کلمه دا په اصل کې فارسي کلمه ده او د نوې ورځې په معنی ده، خو د مؤرخینو له انده نوموړې کلمه د نوبهار څخه را اوښتې ده یعنې په لومړیو کې نوبهار وو، د وخت په تېرېدو سره په نوروز باندې بدل شو.

**نوبهار** : دغه لفظ په لومړیو کې د هغه اور لمانځلو ځای نوم وو چې د زردشت او ذوالقرنین تر مړینې وروسته (۵۸۳) کاله ترمیلاد وړاندې په بلخ کې جوړه شوه او په نوبهار باندې ونومول شوه بیا د مجوسیانو لخوا د هغه ورځې لپاره نوم کېښودل شو چې دوی به د دغه اور لمانځلو عبادت ځای د پیل د ورځې د احترام په موخه لمانځل او د اور عبادت به یې پکې کولو او اختر به یې ورته ویلو، د هغوی د خوښې لپاره دا نهه ورځې ځانګړې شوې وې او دارنګه هغوی به ټول هغه حرام شیان ځان ته حلال بلل چې د زردشت او ذوالقرنین په دین کې پر دوی باندې حرام شوي ول.

دارنګه د نوروز د تاریخ په هکله اسلامي مؤرخین لیکي: نوروز د اور عبادت کونکو او مجوسیانو (۴۸۳) کاله ترمیلاد وړاندې پیل کړی او هر کال به په بلخ، آذربایجان، ایران او ځینې نورو سیمو کې به د اور د عبادت کونکو لخوا لمانځل کېدلو. رواه ابوداؤد کذا في المشکات لومړی ټوک، پاڼه (۱۲۲)

**نبوي حدیث**: اسلام کې د نوروز لمانځلو منعه راغلې او دارنګه په معاصر یا اوسني وخت کې خلک د کال نوې ورځې په خوښیو لکه میلې او جشنونو سره لمانځي او دا په اصل کې د زردشتیانو او مجوسیانو له اسلام څخه مخکې پیل کړی وو، خو کله چې د سلام دین په نړۍ کې روڼ وځلیدو او هغه وخت حضرت رسول کریم صلی الله علیه وسلم چې دا دوه ورځې ولیدلې، لکه: یوه یې د نوروز په نامه وه او بله د مهرنجان په نامه وه، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم د دغو ورځو لمانځلو څخه خلک منعه کړل:

عن انس قال: قدم رسول الله صلی الله علیه وسلم المدینة ولهم یومان یلعبون فیهما فقال: ماهذان الیومان قالوا کنا نلعب فیهما في الجاهلیة فقال رسول الله صلی الله علیه وسلم قد ابدلکم الله بهما خیرا منهما یوم الاضحی ویوم الفطر. رواه ابوداود

حضرت انس رضی الله عنه فرمایي: رسول الله صلی الله علیه وسلم چې مدینې ته تشریف راوړ د مدینې خلکو په دوو ورځو کې خوشحالي کولې رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل: دا کومې ورځې دي؟ دوی ورته وویل: موږ د جاهلیت (کفر) په وخت کې په دغو ورځو کې خوشحالي کولې رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل: الله جل جلاله دغه ورځې په دوو داسې ورځو سره در بدلې کړې چې تر دغو ورځو غوره دي یوه د لوی اختر ورځ ده او بله د کوچني اختر ورځ ده.

د پورتني حدیث په تشریح کې اشعة اللمعات شرح د مشکاة لیکي چې دغه ورځې کومې چې د مدینې خلکو لمانځلې یوه د نوروز ورځ وه او بله د مهرجان ورځ وه.

**د امیرالمؤمنین حضرت علي رضي الله عنه دریځ:**

امام بیهقي رحمه الله په سنن الکبري کې له حضرت علي رضی الله عنه څخه روایت کړیده چې هغه ته د نوروز په ورځ ډالۍ وړاندې شوه نو هغه منعه کړه او داسې یې وویل: خپل کارونه او اسلامي عادات جاري ساتئ هره ورځ نوروز ده. ددې حدیث راوي ابو اسامه فرمایي علی رضی الله عنه د نوروز نوم هم بد وګڼلو چې دا نوم نوی ایجاد شویده امام بیهقي رحمه الله وایی چې د کراهت وجه یې دا ده چې دا ورځ شریعت نده ځانګړې کړې او دوی یې له ځانه ځانګړي کوي او لمانځي یې.

همدارنګه ملاعلي قاري رحمه الله لیکي: و سأل المعلم النیروزیه و لم یعطه المسئول عنه، یخشي علي المعلم الکفر، و لو اعطي المسئول عنه، یخشي علیه الکفر.

که معلم له زده کوونکو څخه د نوروزي سوغات وغواړي، او زده کوونکی هغه شی ورته ورنکړي، نو په معلم د کفر ویره ده او زده کوونکی یې خبره ومني او هغه ورته ورکړي نو پر هغه هم د کفر ډار شتون لري.

د احنافو په سترو کتابونو کې، لکه: فتاوي بزازیه جلد ۲ پاڼه ۳۳۳، خلاصه الفتاوی جلد ۴ پاڼه ۳۸۴، فتاوی تاتارخانیه جلد **۵** پاڼه **۳۵۴**، ټول په دغه خبره تاکید کوي چې د نوروز لمانځل او ارزښت ورکول او دارنګه چا ته سوغات ورکول، دا په اسلام کې ناروا او ناجایز دي، ځکه په اسلام کې د اختر او خوښي ورځې معلومې دي لکه د لوی او کوچني اختر ورځې او مسلمانانو ته پکار ندی چې د مشرکینو په اخترونو کې ګډون وکړي یا د هغوی اخترونه ولمانځي.

خبير احمد مجاهد

# د اسلامي بصيرت اوخلوص ددنګ منار درحلت اوفراق په وير کې ......... !!!

مرحوم مولوي سيدمحمد حقاني ، هغه پرافتخاره اوباوقاره هستی وه چې خپل عمر ټولي لحظي اوشپي ورځي يې داسلام دمقدس دين دلوړاوي اودمحمدي شريعت دنفاذ په غم اوهڅه کې صرف اوتيرکړل .

شاوخوا يوويشت کاله دمخه کله چې په افغانستان کې دفساد او بربريت په ضد دطالبانو اسلامي حرکت پيل شو له هماغه ورځي بيا دمرګ ترسلګيوپوري دعزت او معنويت دغه نوميالی سالار يو ساعت اويوه لحظه هم پرته لدې چې داسلام او هيواد په سرشاره خدمت بوخت ووسي بل شغل او بنيادي بوختيايې نلر له .

مستعد اوسرلوړی حقاني صاحب ، داسلامي امارت په ليکو کې له فرهنګي مورچله نيولي ، بيا ترلوړو سياسي اوټولنيزو خدمتونو اودندو پوري ،چې کومه يوه به هم ورلغاړې شوه ، دهغه دمخلصانه اومدبرانه قيادي هلوځلو ورسته بـه هغـه اسـاس او اداره په ډيرلږ وخت دنظم ، شفافيت او ترقی يوه نه هيريدونکی نمونه اومثال و ګرځيده

منلي حقاني صاحب ، دخپلو حسنيواخلاقو اوخاصو کمالاتو په مټ ذهنتونه جوړول ، دملګرو ترمنځ بـه يـې دريښـتيني اخوت فضا حاکموله ، دنفرت ، کرکي اوتعصب دجړړو بيخکني به يې کوله اودهرمسلمان په غم به غمجـن اوپـه خوشـحالی به يې خوشاله وو .

دپاک ضميره حقاني صاحب ، تقوا صرف دهغه په وينا کې نه وه خلاصه، بلکې څه به يې چـې ويـل هغـه تـه بـه يـې دعمل جامه هم ور اغوستله ، دبيت المال په حسابونو او شتمنيو کې بـه نهـايی حسـاس او محتـاط وو ، زيـات کوشـش يـې داکاوه چې دجهاد مال په شخصي حاجتونو کې ونه لګيږي.

په نورو اوبې شميره ځانګړتياوو سربيره، مجاهد حقاني صاحب دجامع او خواخوږي فکر څښتن وو، تل به يـې مجاهـدينو او ملګرو ته ددې خبري توصيه اوتلقين کاوه چې له ولس سره نيک اونرم چلند وشي ، هميشه به يې په مجالسو اومشـورو کې هغه طرحه اوپريکړه تائيدوله اوترجيح به يې ورکوله چې ګټه او نفع به يې مخامخ عام ولس ته رسيدله.

خو الله تعالی ته نوره همدا منظوره اومقدره يې وه چې زمونږ له منځ نه به دا نازولې اومتبرکه هستی اخلي اوخپـل لـور تـه به يې بولي...

ياالله مونږ خو دحقاني صاحب په رحلت او وفات سخت وردرديدلو ، په فراق يې زمـونږ زړونـه قلـم شـول ، هغـه يـو دريش صفته قايد، بې ريا مجاهد، د اخلاقو معلم، دخواخوږی اوميني مرجع اودځوريـدلو پرګنـو لـوی غمخـوار وو ، تـه يـې ټول خدمتونه ، جهادونه اوسعيې په خپل دربارکې قبولې اومنظوري کړې، کورنی ، دوستانو اومجاهدينو ته دجميل صـبر اواجـر ترڅنګ ته پرې دنعم البدل انعام ولوروه . امين ثم امين

په تلوتلوکې، دښايسته حقاني صاحب، حسيني ځوانی او پاکو ولولـو تـه دغـه پښـتو لنـډۍ ډالـی کـوم اودخـاصي مينـي احساس پرې اوبووم چې : مرګيه صبر راته وکړه.....مادیار ی بندونه اوس ترلی دينه !

SRAK

## د أمیر المؤمنین ملا أختر محمد منصور (حفظه الله) له ویناوو څخه:

عام مسلمانان او بې دفاع ولس زموږ په لاس کې امانت دي، دوی الله تعالی موږ ته راسپارلي او موږ یې ورباندې حاکمان ګرځولي یو ،دا زموږ لپاره لوی د ازمویښت ځای دی چې موږ له دوی سره څرنګه چلند کوو؟

که خدای مکړه له دوی سره د کبر، غرور، بداخلاقۍ او له شدت څخه ډک چلند وکړو، ضرور به د الله تعالی د قهر مورد ګرځو، ځکه الله تعالی په خپلو بندګانو هیڅ نوع ظلم د هیچا لخوا نه قبلوي،نوځکه باید متوجه واوسو او د نبوي فرمان په مقتضی چې فرمایي: بشروا و لاتنفروا، یسروا و لاتعسروا. خلکو ته د خوښۍ خبرې وکړئ او نفرت مه کوئ، آساني وکړئ او سختي مه کوئ. باید له خپل مسلمان اولس سره د حسنه اخلاقو، عاطفې او نرمۍ څخه ډک چلند وکړو،ترڅو هم الله تعالی رانه راضي سي او هم د خپل اولس ملاتړ راسره وساتلی سو....

[پاتې برخه د مجلې په ۳ مخ کې وګورئ]